# څرک

نهم کال لومړی – پرلپسې ۷۷ ګڼه – لړم ۱۳۹۲ ل – اکتوبر ۲۰۱۳م



هغه هیوادونه چې امریکا ورسره په مذاکراتوکې درغلې کړي !!

د" سنځري " هیبنوونکی فدایي برید پیچلی او جالب پلان يې !

امنیتي نړونړ، که ماهړن !خر ځلاو !!

دایران اوامریکا ترمنځ داړیکو نوی باب

دمجاهدینودفرهنګي ګوزار انګازې



امریکایانو دافغانانو ۲۲ ملیارده تلیفوني اړیکې اوریدلي

# ځرک

## علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

نهم کال لومړۍ ګڼه - پرلپسې 77 ګڼه - لړم 1392ل، ذی الحجة الحرام1434ق - اکتوبر 2013م




سرليک




امتياز :

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل ميړنی او افضل محمد تراب

ګڼوت :

| | | |
|---|---|---|
| افغانستان : | 180 | افغانۍ |
| پاکستان : | 240 | کلدارې |
| امريکا : | 60 | ډالره |
| اروپا : | 60 | يورو |
| يوه ګڼه : | 15 | افغانۍ |
| | 25 | کلدارې |

يادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداره دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

پتې :

تخنيکي چارې : عابد مجاهد



کابل : د ځرک دفتر

srak_111@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# دمجاهدينو دفرهنګي ګوزار انګازې

دکابل دشړيدلي رژيم چارواکي اوباداران يې اوس ټول په دې خبره متفق دي چې دمجاهدينو روان فرهنګي اومطبوعاتي بهير سخت منسجم اوهره پيښه اوتحول په موثراواغيزمن ډول تبليغوي اولدوی زيات سرعت لري.

درواني ميلادي مياشتې په ۲۸ نيټه دکابل اداري دويندويانو دارتباطاتو په اړه په يو مهم کنفرانس کې، دکابل رژيم ځينو مهمو چارواکو، ويندويانو اوددوی (درباري) کارپوهانو اودامريکا اوناټو استاځو پکې برخه اخيستې وه ټولو په خپلو خبرو اووينا وو کې دمجاهدينو ميډيا اورسنۍ موثرې وبللې او اعتراف يې وکړ چې که څه هم وسايل او امکانات ددوی په اختيار کې دي بيا هم طالبان په لوړ کيفيت او اغيزمنه محتوا دپام وړ خپرونې اونشرات لري

په دغه غونډه کې دکابل دفاع وزارت اوملي امنيت له ويندويانو رانيولې دايساف ترنطاقانو پورې هر ويناوال په دې خبره ګډ نظردرلود چې دطالبانو فرهنګي امور او ميډيا له اټکل زيات منسجمه اوهره پيښه اوجريان په دقيق انداز ارزوي اودځان په نفعه يې څرخوي.

دوی ومنله چې دمجاهدينو چاپي خپرونې، بريښنايي رسنۍ اوويډيويي جهادي فلمونه اوتراني په داخل اوخارج کې بې شميره لوستونکي اومينه وال لري او په خاص ډول يې دځوانانو ذهنونه دځان په ګټه اړولي، همدارنګه يې ويندويان ډيره وړه پيښه هم په لږ وخت دخپلو رسنيو په مټ دخلکو غوږونو ته رسوي، اعلاميې، غبرګونونه اودمشرتابه پيغامونه په ټاکلي اوموثرډول خپروي اوهغه ټکي پکې راوړي چې ولسي اوديني رنګ پرې غالب وي ترڅو يې په عام ولس کې هرکلي وشي.

په رښتيا هم چې داسلامي امارت مطبوعاتي اوفرهنګي سنګر دمجاهدينو له پوځي اوجهادي پرمختياوو او پيښو سره اوږه پر اوږه پرمخ روان دی اوددغه سنګر اتلان داد ځان لپاره لوی افتخار اوويار بولي چې الله تعالی دغه موثراوسترخدمت له دوی نه اخلي؛ خودهغه ترخنګ دډيرې خوښۍ ټکی دادی چې داخلي اوخارجي دښمن اوس په دې يوه خوله تياريږي چې دمجاهدينو هغه فرهنګي ګوزار چې ددوی په زړونو اومغزو کې يې کلک ټپونه اوزخمونه جوړ کړي اعتراف پرې وکړي اوقوت ته يې دتسليمي سر کيږدي.

دکابل دمخ په زوال رژيم واکمنو اوبادارانو ته يې وايو چې شک نشته دمجاهدينو فرهنګي اومطبوعاتي وسايل اوتجهيزات ستاسي له وسايلو او امکاناتو سره دپرتلې اومقايسې وړ ندي، ځکه مجاهدين دګوتو په شمير فرهنګي غړي اودګوتو په شمير نشراتي وسايل لري اودومره مالي امکانات هم په اختيار کې نلري چې دډالرو په زورپرې په زرګونه ليکوالان، ژورناليستان اوسياستوال زرخريد اودخپلو زهرجنو او پوچو تبليغاتو دخورولو په برخه کې يې استخدام کړي؛ خوداچې بيا هم ستاسې په اعتراف دمجاهدينو ميډيا اوفرهنګي امورله خپلو ډير منظم، وينښ اوموثربولی داپرته له الهي غيبي مرستې اوتسخير نه بل هيڅ دليل اوعلت شاته نلري.

تاسې بايد په دې حقيقت هم ځانونه پوه کړی چې داسلامي امارت مطبوعاتي اوفرهنګي بهير په جهادي جذبه اومينه روان اوهرغړی يې چې کومه کرښه ليکي اونشروي يې له الله تعالی نه دهغه اتل فدايي هومره ثواب غوښتنه اوارزولري چې ستاسي دکرغيړن پوځي کتارمنځ ته درننوځي اوتاريخي درس کوي، همدغه وجه ده چې غيور خدای ﷻ داسلامي امارت دفرهنګي امورودچلونکو په قلمونو، ژبو اوټولو هڅو کې لوی اثرلورولی اوتاسې غوندې داسلام اوافغانانو غليمان ديته مجبوروي چې په حقايقو اعتراف وکړئ اودمجاهدينو دفرهنګي ګوزارازانګې په خپله په شد اومد بيان کړئ (الحمدلله)

# امنیتي تړون ، که ماتړون ! خر څلاو !!

عبید تنویر

داسې معلومیږي چې امریکایي ګوډاګیان لاهم دخپلو بادارانو په لاس زموږ دمسلمان او مظلوم ولس د کړولو ،وژلو او محکومولو له هوس څخه ندي بېزاره اوماړه شوي او د تیر و ۱۳ کلونو په اوږدو کې یې چې څومره افغان ولس ته ناورینونه او زیانونه ورواړول زړه یې ندی پرې یخ شوی ؛نوځکه غواړي چې دیوې بلې نامعلومې مودې لپاره امریکایي وحشت او تیري پر افغان بې چاره ولس مسلط اوخپور وساتي !!!

که په رښتیاهم امریکایانو افغانانو ته سوله ، ترقي اونیکبختي راوړلای شوای او یایي هغه هدف وایی ، نو دیارلس کاله خو لوی فرصت او اوږده موده وه ، ولې هغوی داکار ونشو کړای ؟ یوداسې ولایت اوسیمه دې په ګوته کړي چې هلته دخلکو بنیادي امنیتي ستونزې اومشکلات حل شوي وي ، بندونه ، شفاخانې ،بربښنا کوټونه اویاحداقل کومه لویه صنعتي فابریکه فعاله اوودانه شوي وي

که څوک داوایي چې امریکایان چا پرېنښودل او ۱۳ کاله یې په جګړې اوجنګ تیر کړل ، نواوس خوهم داتضمین څوک نشي ورکولای چې دامریکایانو په وړاندې به جنګ او مقاومت لدې ورسته نه کیږي اود سترو پوځي اډو او شیطاني ځالوپه وړاندې به یې افغانان لاس ترزنې کښیني ، په دې معنا چې دافغانانو هسکې سترګې به په شنوسترګو امریکایي حرامیانو لګیږي او ګوزار به نه پرې کوي !!؟

امریکایي ګوډاګیانو داځل دبون له کرغیړنې لوبې او سوداڅخه بده او منحوسه لوبه پیل کړي ، ځکه دبون په غونډې کې خو دشمال ټلوالې او په غرب کې افغان بڅیلانو امریکایانو او غربیانو ته صرف دیرغل بلنه ورکړه ، ولې داځل دامنیتي تړون ترعنوان لاندې نه داچې دهرډول یرغل او سلطې اجازه ورکوي ، ورسره دامجوز هم په اختیار کې ورکوي چې که امریکایي عسکر و هر څومره په افغاني عفت او عصمت لوبې اومسخرې کولې او افغانان یې وژل نو هغه کوم بشري جرم او خلاف ورزي نه بلل کیږي او افغانان به داعتراض حق هم نلري ؟

د کابل اجیر رژیم عجیبه پلمه خلکو ته وایي چې امنیتي تړون لاسلیکول لدې امله ضروري دي چې افغانستان به دګاونډیانو له تعرض

او مداخلې څخه مصؤن پاتې شي او که امریکایان نه وي نو بیا دغه مصؤنیت ممکن ندی !!؟

خو دوی بایدپوه شي چې افغان ولس دومره ناخبره اوبې جریانه هم ندي څومره چې دوی ورته اټکل کوي ، که یوځل په رښتیاهم ګاونډي هیوادونه مداخله کوي اودومره ځواک ولري ، نوچې داکار یې دامریکایانو په حضوراوله هغوسره په جګړه کې کولای شوای ؛ نو که فرضاً امریکایان یوځنګ ته شي او دجګړې سپر د کابل رژیم جوړ کړي څوک څه فکر کوي چې ګاونډیان به بې زړه شي او که نور به هم زړور ؟

بله پوښتنه داده چې دګوشتي او ګلام خان په ګډون کومې سرحدي پوځي سیمې اومهمې پوستې چې امریکایانو تخلیه کړي هغه یې د کابل رژیم ته وسپارلې که ګاونډیانو ته ؟ اود کابل رژیم واکمن دې داهم ووایي چې ګاونډیانو دامریکایانو په حضور کې دافغانستان پولې او سرحدي سیمې ډیرې ولکه کړي که له هغه وړاندې ؟

له بل اړخه تراوسه پورې ۲ لکه افغانان امریکایانو اوخارجي قواووژلي او دوه میلونه یې شکنجه کړي ، لدې پرته چې یو او دوه تنه امریکایي عسکر هغه هم په امریکاکې نمایشي محکمه شوي اوسزایې دیوې پوځي رتبې په ټیټیدا تمامه شوي ؛ که چیرې د کابل رژیم ورسره

دقضايي مصؤنيت رسمي معامله هم وکړي بيابه ښه ځوک امريکا ته ووايي چې قواوومو بې چاره اوبې دفاع افغانان ووژل اويايې دافغانانو له ديني اوملي عنعناتو څخه سرغړاوی وکړ .

دکابل ولسمشر ، څو اونی دمخه په يوې تلويزوني مرکه کې چې اوس هم په فيسبوک کې موجوده ده په ډاګه وويل : ( که برادر ! بيغم باشيد امريکيها ازافغانستان نمی رود بيغم باشيد ، امريکيها برای ما بند کوکچه وکجکی را اباد می کند وما درعوض همرايشان موافقتنامه امنيتي و مصؤنيت قضايي امضا می کنيم )

مونږ کرزي ته وايو چې يوځل امريکايان ستا په اند په هيڅ قيمت په خپله رضانه ووځي او ستا په خبره چين ، هند ، ايران ، روسيه او پاکستان ګوابښل او ټکول غواړي ، نو بيا ولې ددغه لوی او سرلوړي ملت په حق کې داظلم او جفا کوې چې دامريکا دغه ښکيلاکي هدف چې هيڅکله دافغانانو په خير او فلاح نده افغاني اړتيامعرفي کوې اوتنها دکوکچې او کجـې دبندونو پـه رغولـو دافغانسـتان هويـت پلـوری او افغانستان دامريکا دګټو لپاره په يوه بل جنګ جای اړول غواړې ؟

کرزی او اپوزيسون يې بله جفاداکوي چې دخپلې هرې غلامی لپاره افغاني تاريخي بنسټونه استعمالوي او سپکوي يې ، که يوځل دکرزي په خبره امريکايان په افغانستان کې په هرقيمت پوځي اډې ساتل او جوړول غواړي او قضايي مصؤنيت هم دهندې په زرو ورنه ترلاسه کوي ، ځکه غلام دبادار په وړاندې کله دومره ځان ټينګولی شي ؛نو داخيانت خولږ ترلږه بايدونکړي چې دلويې جرګې اوبلې کومي افغاني مجمع پـه توسـط دامريکايانو تورمخونه وويني اوهرې نادودې ته يې مجوز پيداکوي ؟

دغه لويې جرګې او مرکې ډاکټر نجيب ، ببرک کارمل او رباني هم ډيرې وکارولې ، خو کوم نجات او مصؤنيت يې نه هغوی او نه يې هم بادارانو ته وروبانښه چې ورځ يې راغله ملت ښه خرپ ترې پورته کړاو نسکورېې وګرځول .

او پر ته لدې چې افغاني تاريخي اقدار سپک او بې ارزښته کړل شي بل کوم مفهوم اومعنانلري !!

دامريکادبهرنيو چارو وزير جان کيری دوه اونی وړاندې کابل ته راغی او هلته يې پـه يوه خبري کنفرانس دکرزي ترڅنګ وويـل چې دقضايي مصونيت خبره زياته مهمه ده ، امريکادافغانستان ملي حاکميت ته احترام لري ، مونږ په نورو هيوادونو کې هم لکه چاپان ، او کوريا امنيتي تړونونه اوقضايي موافقتنامي لرو چې افغانستان له هغو څخه هيڅکله نشـي مسـتثنی کيـدلای او کيـدای شـي دنومـوړو هيوادونـو پـه څيـر لـه افغانستان سره هم امنيتي تړون ولرو.

اوس بـه راشو ديتـه چې امريکايانو لـه کوريـا اوچاپان سره کوم ډول تړون لاسليک کړی اوايا په رښتيايې هم دهغوملي حاکميت ته احترام کړی ؟

دکوريا اوجاپان دتړون په يوې ځرګندې او ترټولومهمې فقره کې داسې راغلي : دامريکادمطلق قضايي حاکميت دحکم لـه مخې نوموړی هيواددا حق له ځان سره محفوظ شميري چې هيڅ امريکايي تبعه دکوم جرم له مخې په بهر کې ترعدلي اوقضايي تعقيب لاندې ونه نيول شي ،

دامريکا او ميزبان هيواد دمشترک قضايي حاکميت په رڼا کې پـه خاصـو موضـوعاتو کې دکومي کړنې او اقـدام حـق شـته، خوداډول موافقتنامه او تړون هم امريکاته داحق ور کوي چې له ميزبان هيواد څخه وغواړي چې له خپل دغه حق څخه تير او ستر ګې پرې پټې کړي !!

لـه عـراق سره دامريکا پـه يـوې خنـدنی موافقتنـامي کې راغلی : کچيري امريکايي عسکر له وظيفوي او رسمي وخت څخه بهر کوم جرم وکړ نو بيايې جرم جرم بلل کيږي ، خو بياهم که امريکاله عراقي دولت څخه وغوښتل چې له موضوع تيرشي ، نو دحسن نيت په اساس به عراق داکار کوي اوله خپل حق څخه به تيريږي!!!؟ببين تفاوت تاکجا تابکجا.

فکت چکرز چې يو امريکايي حقوق پوه دی وايي : امريکايان بنايي په افغانستان له لسو زرو نيولې تر ۲۵ زرو پورې پوځيان ايسار کړي ؛خوپه دې خبره دې افغانان پوه وي چې امريکايان په هيڅ بيه داحق چاته نه ور کوي چې عسکر يې دکوم جرم له مخې مجرم وپيژندل شي اوبيا هلته محکمه شي ، کيدای شي ، امريکايان يوڅه نرمښت وښيي او افغانانو تـه پـه خاصـو موضوعاتو کې حق ور کړي خو پـه عمل کې يې تطبيقول ناشونی کار بريښي ، ځکه امريکا دسلطې او سرزوري له منطق څخه نده لويدلې ، دهغه په خبره ښه داده چې افغانان دغسې کوم تړون ته له سره غاړه کيښږدي .

# آیا ایمان له چا څخه نه ځي؟

لیکوال :مولوي عصمت الله عزام

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امابعد:انسانانو ته چې الله پاک څومره نعمتونه ورکړي په هغو ټولو کي تر ټولو لوی نعمت ایمان دی، دایمان سره په قیمت کي هیڅ شی برابرنه دی

او تر ټولو ضروري کارهم دمؤمن لپاره دادی چې باید ددې ستر نعمت ساتنه وکړي.

داوجه ده که دانسان ایمان، سر، عزت او مال ته خطره پېښه شوه نودهرڅه ورکولو ته به تیار ېږي خو ایمان به له لاسه نه ورکوي.

ځکه ایمان داسي شی دی چې ددې له امله دانسان ابدي بریالیتوب په برخه کېږي.

خو دا خبره هم هرچا ته معلومه ده چې دقیمتي شي دښمنان هم زیات وي، څومره چې یو شي ډېر ارزښت ولري، هغومره به خطرې هم ورته ډېري متوجه وي او انسان که غواړي چې هغه ارزښتناک شی ورسره پاته شي او ده ته په کار ورشي نودهغه شي ساتني ته به ډېر پام کوي.

ددې مثال داسي دی لکه دچاسره سره زروي، نوخاوندیې ډېرورباندي وېرېږي چې داسي نه وي راڅخه ورک شي، غل راباندي خبرنه شي او څوک یې په کم قیمت راڅخه وانخلي.

نو همدا راز ایمان ته هم ډېرخطرونه متوجه دي او باید دایمان خاوند دایمان په هکله داسي احتیاط او وېره ولري

لکه د سروزرو خاوند چې د خپلو سروزرو په هکله لري او ورسره احتیاط کوي، چې داسي نه وي داسي خبره یا داسي کار راڅخه صادر شي چې له امله یې دایمان له دولت څخه بې برخي شم.

ځیني خلگ دایمان په هکله داسي فکر کوي چې ایمان دغره په څېر دی.

په غره باندي که باران وشي، که زلزله ورباندي راشي، که بمبارورباندي وشي، که یخ ورباندي راشي او که گرمي ورباندي راشي په ټولو حالاتو کي نه بې ځایه کېږي بلکي په خپل ځای کلک ولاړوي.

همدا راز ځیني خلگ ایمان هم دغسي گڼي چې یو وار سړي ایمان راوړی، نو بس تر دې وروسته که هرڅه کوي مسلمان دی، په ایمان کي یې هیڅ فرق نه راځي.

دا دځیني خلگو بې ځایه او ناسم خیال دی ځکه ایمان دالله پاک او بنده ترمنځ یو باریک تعلق دی، دا تعلق په ځیني خبرو او کارو سره پرې کېږي او له منځه ځي.

ددې مثال داسي دی لکه دیو چا ډېر عمر دوست وي، دډېره وخته یې ورسره دوستي او محبت وي خو یوه ورځ یو داسي کار وکړي او یا داسي خبره وکړي چې له امله یې دټول عمر دوستي له منځه ولاړه شي او نه یوازي داچې دوستي له منځه ولاړه شي بلکي ددوستی پرځای یې ورسره دښمني او دمحبت پرځای یې کینه پیدا شي.



***پروفیسر یګاساکي چې د جاپان د اوکیناوا په ښارکې یو پیژندل شوی پوه دی، د ۲۰۰۳ په اکتوبرکې د المان په هامبورګ ښارکې یو نړیوال کنفرانس ته وویل چې امریکایانو په افغانستان کې ۴۴۰۰۰۰ پونډه خنثی شوي یورانیم کارولي دي. دده د ټکل پر بنسټ خنثی شوي یورانیم په افغانستان کې تر جاپانه چې د دوهم نړیوالې جګړې پر مهال په کې کارول شوي و، ډیر استعمال شوي.***

***میرمن لارین ماریت چې د کلیفورنیا په نامتو لابراتوار کې یې د اټومي وسلو په جوړولو کې دنده ترسره کړې د توکیو په نړیوال جنایي تربیون کې د یګاساکي راپور یې تایید کړ د ټولې نړۍ په وړاندې یې په ډاګه کړه چې ددې سترو بشري جنایاتو پړه او مسؤلیت د امریکې د ځواکونو په غاړه دی او باید ټوله نړۍ او بشریت ددې جنایاتو او مړګ ژوبلې پوښتنې د بوش د واکمنۍ څخه وکړي.***

***باید وویل شي چې خنثی شوي یورانیم ۲ بلیونه کاله ژوند لري او کومې ناروغۍ چې ددې وژونکي عنصر له وجې پیدا کیږي هغه د سرطان، لکومیا، اټیزم، د ماغزو او د بدن د نورو غړو معیوبې او د دایمیون د سیستم کمزوري ده.***

دغه مثال د ایمان هم دی.

د ایمان تعلق هم د ځینو کارونو او خبرو له امله له منځه ځي او انسان له ایمان څخه خلاصیږي.

دې خبرې ته په احادیثو کې هم اشاره شوې ده د نمونې په توګه یو حدیث دادی:

عن ابي عبد الرحمان بلال بن الحارث المزني رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: ان الرجل لیتکلم بالکلمة من رضوان الله تعالی ماکان یظن ان تبلغ مابلغت یکتب الله له بها رضوانه الی یوم یلقاه، وان الرجل لیتکلم بالکلمة من سخط الله ماکان یظن ان تبلغ مابلغت یکتب الله له بها سخطه الی یوم یلقاه(رواه مالک في المؤطأ والترمذي وقال حدیث حسن صحیح\ ریاض الصالحین۴۴۲ )

ژباړه: له حضرت ابو عبد الرحمان بلال بن حارث مزني رضی الله څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یقینًا یو سړی د الله تعالی د رضامندۍ داسي خبره کوي چي ده داګومان نه کاوو چي دا به ترهغه ځایه ورسیږي کوم ته چي ورسیدله.

الله پاک دده لپاره ددې خبري له امله خپله رضا ترهغي ورځي لیکي په کومه کي به چي دی د الله پاک سره ملاقات کوي (یعني د قیامت ورځ) او یو سړی د الله تعالی د ناراضتیا یوه خبره کوي چي ده داګومان نه کاوو چي دابه ترهغه ځایه ورسیږي کوم ته چي ورسیدله، الله پاک ددې خبري له امله دده لپاره خپله ناراضتیا ترهغي ورځي پوري لیکي په کومه کي چي به دی د الله پاک سره ملاقات کوي ! !

نو دیوې خبري له امله ترقیامته رضا هم ورته لیکل کیږي او دیوې خبري له امله ناراضتیا هم ورته لیکل کیږي.

نو له دې امله باید انسان کوشش وکړي چي داسي خبري او کارونه ونه کړي چي له امله یې ایمان ته زیان رسیږي.

او مؤمن باید له خپل ایمان څخه غافل نه شي، داسي نه وي چي دی خبرهم نه وي او ایمان ورڅخه تللی وي، باید د خپل ساتنه وکړي او داسي وبره باید د ایمان په هکله ولري لکه په سروزرو چي د سروزرو مالک وېرېږي بلکي ترهغه زیات.

ځکه سره زر د دُنیا یو شی دی، ایمان خو تر دې ډېر زیات قیمتي دی، سره زر خو صرف د مثال په توګه بیانیږي.

پای

وصلی الله علی نبینا محمد وعلی آله واصحابه اجمعین



# دامریکابودیجې په سر

# نمایشي توافق

لطیف الله -ع

امریکایانو دادعوه درلوده چې له یوه لوري په (اقتصادي اومالي) حوزه کې دنړۍ یکه تاز مادي اوجهادي قدرت دی ، له بلې خواپه سیاسي ډګر کې هم دوی دخپل داخلي همغږۍ او توافق له مخې په ټول جهان باداري کوي .

په لنډو تیرو اونیو کې دامریکادبودیجې په سر نه توافق او دامریکا دفدرالي نظام تعطیلی اودلکونو امریکایانو له کاره ګوښه کیدا ، په سیاسي او اقتصادي دواړو برخو کې داخبره په ډاګه کړه چې امریکانور هیڅکله یوه نړیوال اقتصادي طاقت ندی اونه هم خپله امریکایانو او حاکمو ګوندونو ته ددغه هیواد ملي ګټې او منافع له خپلو شخصي ګټو مهمې او ارزښتمنې دي .

څکه دامریکا خبري سرچینو څو ورځې وړاندې اعلان کړه چې دفدرالي دولت په تعطیلی سره امریکاته ۲۴ ملیارده زیان واوښت چې که امریکایان دغه ۲۴ ملیارده خساره په روان لویدلې مالي حالت کې پوره کوي هغه دڅا خبره (نه) به یې ورسره ووځې .

په سیاسي حوزه کې هم دجمهوریت پلوو او دیمکراتانو محاذارایو او سختو سیالیو شاو خوا ۱۶ ورځې دامریکا په ملي منافعو او دخلکو په حقوقو لوبې وکړې او دهغو هیڅ کړاو ته یې ونکتل او په عین حال کې یې له یوبل څخه دباج اخیستلو دعوې هم پوره ته کړې .

په دې برخه کې یوه بله مهمه نکته داده چې که څه هم داوس لپاره دامریکادابرو دخوندیتوب لپاره دواړو ګوندونو یوه کاواکه موافقه لاسلیک کړه او اجازه یې ورکړه چې تریوې مودې پورې فدرالي مرکزي دولت حرکت پیداکړي ، خو هغه اداري چې ولس ورته مخامخ اړتیا لري لکه (صحي او اجتماعي) بودیجه اولګښتونه هغه یې اوس هم مستثی کړي او معطل پاتې دي ، چې داهم دواکمنو امریکایي ګوندونو له خپلو خلکوسره دبد او ظالمانه چلند یو څرګند مثال دی .

دامریکامخ په ځوړ مالي او اقتصادي وضعیت په ګوته کوي چې دغه حالت به ترډیرې مودې روان وي ؛ ځکه له یوه لوري دامریکا اراباه په مرګاني خساره ولاړه ده او له حرکت لویدلې ده ،له بلې خوا دامریکایي سیاستوالو او واکمنو ترمنځ کشمکش هم هغې مرحلې ته رسیدلې چې دامریکا له سقوط سره توافق کوي خو له خپلو ګټو او ځاني غوښتنو څخه تیریدو ته ندي تیار .

کریستینلاګارد» چې دپیسو دنړیوال صندق مشر دی وایي : دامریکاپه سنا کې دبودیجې په سر توافق موقتي دی او په نیږدې راتلونکې کې داویره موجوده ده چې یوځل بیا دامریکا فدرالي دولت معطل او په نتیجه کې یې خپله امریکااو نړۍ له درنو زیانونوسره لاس او ګریوان کړي .

دچین دولت هم دامریکاورستي بحران ته په کتو په یوه رسمي غبرګون کې ویلي دي چې ، امریکاباید نورځان دنړۍ له مالي ډالري باداری څخه په څنګ کړي ، ځکه دغه انحصار نړۍ ته فاجعې رامنځته کړي او هروخت ورته بحرانونه زیږوي .

د 24 په نامه فرانسوي تلویزون دچین دګټو مهموسوداګرو او دولتي سرچینو له قوله په یوه راپور کې ویلي : امریکا نور ددې اهلیت نلري چې

دنړۍ په اقتصاد باندې نفوذ ولري ، ځکه امریکا هغې مرحلې ته رسیدلې چې خپل ځان له خسارو نشي بچ کولي ، دهغوپه اند امریکا لا د۲۰۱۱ کال دوال استریت مالي فجایعو عوامل ندي لیري کړي دفدرالي نظام روان رکود او دتعطیلی زیانونه خو پرځای پریږده .

دغه سرچینه وایي : چین دامریکا یو زره دوه سوه او ۷۷ ملیارد ډالره قرض پانې او سندونه په لاس کې لري ، که چیري په قطعي ډول دامریکادبودیجې په سر موافقه ونشي چین له ستر مالي زیان سره مخ کیدای شي . همدارنګه که چیري دډالرو ارزښت کم او له سقوط سره مخ شي دچین هیواد چې په خپله خزانه کې ۳ زره اوپنځه سوه ملیارده ډالره زخیره لري ،له امله به یې چین له لوی تاوان اواقتصادي فاجعې سره مخ شي !

دامریکایي دولت دتعطیلی څو عوامل :

دامریکا دفدرالي نظام تعطیلي په دو جنبو پورې ځان تړي ، یوهبی یې سیاسي ده اوبله یې اقتصادي ، ښکاره ده چې سیاست په اقتصادي جنبې پورې زیات تړلی وي ځکه اقتصاد چې کله له پښنو ولوید سیاست هم ورسره ځان عیاروي اوبیاپه ۲۱ قرن کې خو کټ مټ دغه حالت رواج موندلای .

دامریکایي دولت معطل تیاله شک پر ته چې ددیمکراتانو او جمهوریت پلوو ترمنځ دهغو سیالیو او اختلافو نو له وجې رامنځته شوي چې دهغو ریښې بیا مخامخ دامریکا دثروت او پیداوار پورې مربوط ګرځي

په اقتصادي برخه کې دامریکا دنوبل جایزې ګټونکی رابرت شیلر ، په یوه مرکه کې دامریکا یي دولت تعطیل دامریکا مالي رکود او دپیداوار ناانډولتیابللې چې عمده علت یې دعراق او افغانستان جګړې او داخلي بیمیز مسایل دي ، هغه وایي چې دغو جګړو دامریکا اقتصاد ته ۱۲ ترلیبونه دبودیجې کسر وراړولي اوچین لدې امله ورسره یوحالت لري چې امریکا زیاتره قرضې له چینایي بینکونو ترلاسه کړ ي ، نو که امریکا له زیان سره فی مخ ده چین هم کیدای شي دغه بحران وګالي .

له بلې خواکه څه هم له ورایه دفدرالي دولت تعطیلي دامریکا دولسمشر اوباما له لوري د( روغتیایي خدماتو ) برنامه بښوول شوي ، ځکه اوباما د۵۲ میلونه امریکایي وګړو ددرملنې او نورو ټولنیزو بنسګټو لپاره کلکه ژمنه کړې وه چې له سنا مجلس څخه به یې دبیمه توب اولګښت منظوري اخلي ، خو جمهوریت پلوو داوباما له دغه پلان سره کلک مخالفت په ډاګه کړ ، خو داهم یوعلت کیدای شي ، ولې دعراق اوافغانستان جګړې او لګښتونه یې هغه څه دي چې دامریکا ملایې ماته کړي او که هرڅومره دامریکا په سنا اوبله جرګه ګی کې دامریکا دبودیجې او مالي رکود په سر موافقې ترسره شي مثبته او اوږده پایله ځکه نلري چې دامریکا ثروت او زیربینا ته دامریکا خودخواهو او سرتمبه سیاستونو له وجې دومره زیان رسیدلې چې که ټوله نړۍ هم ورته اشر شي جبران اوحل یې نشي راویستلای .

## په زړه پوری اسلامی معلومات

۱- د حضرت محمد (ص) ملاقات په لومړي آسمان کي د حضرت ادم(ع) سره شوی ؤ.
۲- حضرت حمزه (رض) د حضرت محمد (ص) کاکا ؤ.
۳- د رسول الله(ص) شکل مبارک د حضرت ابراهیم(ع) په شان ؤ.
۴- د حضرت محمد (ص) اخیرنی غزا د تبوک غزا وه.
۵- هغه کافر ابن قمیه وه چي د احد په غزا کي یې د حضرت محمد (ص) غاښونه مبارک شهیدان کړي وه.
۶- حضرت محمد (ص) دوه ځله حضرت جبرائیل(ع) په خپل اصلي صورت کي لیدلی ؤ.
۷- د الله(ج) په حکم سره تر ټولو لومړی چي کوم پیغمبر هجرت کړی وه حضرت لوط(ع) ؤ.
۸- د حضرت موسی(ع) ذکر یوسل او شپږ دېرش ځله په قرآنکریم کي شوی دی.
۹- حضرت ابراهیم(ع) د حضرت لوط(ع) کاکا ؤ.
۱۰- د حضرت ادم(ع) عمر زر کاله ؤ.
۱۱- هغه پیغمبران چي په ماشوموالي کي پیغمبري ورکړل شوې ده حضرت عیسی(ع) او حضرت یحیی(ع) وه.
۱۲- هغه پیغمبر چي په صبر کي ډېر مشهور وه حضرت ایوب (ع) ؤ.
۱۳- هغه پیغمبر چي په حسن کي ډېر مشهور وه حضرت یوسف(ع) ؤ.

# اهل سنت والجماعت

اهل سنت والجماعت

## یا ناجیه فرقه

دریمه برخه

مفتي شاهد حقاني

لکه څنګه چې مو په مخکنیو مباحثوکې ورته نغوته وکړه ،چې دپرله پسي فتنوپدې بحراني پیرکې چې یوه بلې پسي لکه دتسبو دمزي غوندې راتوییږي، مسلمانانو ته د(اهل سنت والجماعت) عقاید اونظریات منل ،لکه دیوې نجات ملې کښتۍ غوندې حیثیت لري ،کوم خلک چې دې کښتۍ کې سپاره شول، هغه به دفتنو له وژنکیو امواجو او ځپو څخه ژغورلي او خپل منزل مقصود ته به ورسیږي او کوم خلک چې لدغه ناجیه فرقې څخه ځان لېرې وساتي ،لیرې به نوي چې دفتنو دریاب کې به له غرقیدا ونه ژغورل شي او د(خسرالدنیاوالاخره)تر حکم لاندې به راشي ،خوله بده مرغه چې په ځینو خلکو التباس راغلی اوځان ته یې خیالي جنتونه جوړ کړي ،اهل حق خو دې اهل سنت والجماعت خو اهل باطل او درسول الله ρله سنتواو صحابه یې کرامو له جماعت څخه لیرې خلک هم ځانونو ته اهل سنت والجماعت نومونه کاروي ،ددې لپاره مو ددې بحثونودا لړۍ پیل کړي، چې ددوئ له منځه رښتیني اهل سنت والجماعت تفکیک او دحق هغه لال یا مرغلره چې ځینو خلکو په شعوري یا نا شعوري ډول په ایرو کې خښه کړي اویا یې دخپلو خواهشاتو په غبارګردجنه کړي، پاکه او داسې ورته صیقل کړو چې ګوندې تازه یې له خپل صدف څخه را ایستلې وي انشاءالله تعالی.

دې لاندینو نصوصوکې به دا خبره وپلټوچې کومو روایاتویا اثاروکې چې د(سواد اعظم )سره په تړاوحکم شوی وي ،نو موخه ترې ( اهل السنت والجماعت) دي اوکله چې دا وروستی امت په ۷۳ډلو ویشل کیږي نو ناجیه او له اوره خلاصه ډله هم همدا ( اهل سنت والجماعت) ده ،دابه هم په ګوته کړو چې ( سواد اعظم )چاته وایې او همدا چې دجمهورو قول حجت دی ،دابه هم وښایو چې (اهل سنت والجماعت )د رسول الله ρددې مبارکې وینا تمثیلونکي دي چې لا څوارلس سوه کاله پخوا یې فرمایلې و ،چې: (( ما أنا علیه واصحابي ))...همداسې به دې بحث کې داهل سنت والجماعت ) دشرعي اصطلاح اضافي او ترکیبي معنی ګانې وکړو ،ترڅو وپوهیږوچې ددې مفهوم څه شئ دی ،ددې اړوند پاتې مباحث به راتلونکیو ګڼوکې ولیکو انشاءالله تعالی !

په (ایسرالتفاسیر) کې یې داسې لیکلي دي:

وثبت ما أخبر به رسول الله صلی الله علیه وسلم، فقد قال: "تفرقت الیهود علی إحدی وسبعین فرقة أو اثنتین وسبعین فرقة، النصاری مثل ذلک، وتفرقت أمتي علی ثلاث وسبعین فرقة". رواه الترمذي وقال هذا حدیث صحیح، وفعلاً وقد وجدت ست فرق، وهي: الحروریة -

والقدرية -والجهمية -والمرجئة -والرافضة -والجبرية. انقسمت كل فرقة من هذه إلى اثنتي عشرة فرقة فصارت اثنتين وسبعين فرقة كلها في النار إلا أهل السنة والجماعة.

(ايسرالتفاسيرلكلام على الكبير)

ژباړه: اورسول الله ρچې په څه باندې خبروکړې و، هغه کټ مټ جوته شوه، هغه ρفرمايلي و، چې يهود په (۷۱) يا (۷۲) ډلووويشل شول، نصارى هم داسې شول، اوزما امت به په (۷۳) فرقو باندې ويشل کيږي (دترمذي روايت) اوامام ترمذي وايي چې داحديث صحيح دى. صاحب د(ايسرالتفاسير) وايي چې همدا اوس حقيقتاً ما(۶) فرقې وليدې، چې هغه يوه: حروريه، قدريه، جهميه، مرجئه، رافضه اوجبريه ده، چې دا هره يوه يې (۱۲)(۱۲) ډلوته تقسيم شوي ده، چې مجموعه يې (۷۲) ډلې کيږي(۶×۱۲=۷۲) داټولې به اورکې وي، مګراهل السنة والجماعة به ترې خلاصه وي.

وأخرج ابن أبي حاتم وأبو نصر في الإبانة والخطيب في تاريخه واللالكائي في السنة عن ابن عباس في هذه الآية قال تبيض وجوه وتسود وجوه قال "تبيض وجوه أهل السنة والجماعة وتسود وجوه أهل البدع والضلالة

وأخرج الخطيب في رواة مالک والديلمي عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه و سلم في قوله تعالى يوم تبيض وجوه وتسود وجوه قال: "تبيض وجوه أهل السنة وتسود وجوه أهل البدع "

ژباړه: ابن ابي حاتم او ابو نصرپه (ابانه)، خطيب په خپل تاريخ او لالکايي په السنة کې دحضرت ابن عباس τد روايت په اساس کاږي: چې ده به ددې آيت په تفسير کې چې ((ژباړه: په هغه ورځ چې ځينې مخونه به سپين شي او ځينې مخونه به تور شي)) داسې فرمايل: دچاچې پدې ورځ مخونه سپينيږي، هغوئ به اهل سنت والجماعت وي او دچاچې مخونه توريږي، هغوئ به اهل بدعت او اهل ضلالت وي، همداسې خطيب په (رواة مالک) او (ديلمي) په خپل تخريج کې د عبدالله ابن عمر τ څخه نقل کړي چې ده به ددې آيت (يوم تبيض وجوه وتسود وجوه) په تفسيرکې داسې ويل: چې داهل سنتو مخونه به پدې ورځ سپين وي او دمبتدعينو مخونه به پدې ورځ تور وي.

درئيس المفسرين عبدالله بن عباس τ او عبدالله عمرτ ددې مبارک آيت تفسيرپه اهل سنتو وکړ، همداسې امام سيوطي رح په (الدرمنثور) کې دهمدې آيت (يوم تبيض وجوه وتسود وجوه) تفسيردرسول الله ρپه يوه مبارک حديث کې چې حضرت ابو سعيد خدريτ يې راوي دى، کړى، لکه چې فرمايي:

وأخرج أبو نصر السجزي في الإبانة عن أبي سعيد الخدري "أن رسول الله صلى الله عليه و سلم قرأ يوم تبيض وجوه وتسود وجوه قال: تبيض وجوه أهل الجماعات والسنة وتسود وجوه أهل البدع والأهواء

(الدرالمنثورللسيوطى)

ژباړه: ابو نصرالسجزى په الابانه کې دحضرت ابوسعيد خدرى τ څخه په روايت سره کاږي: چې په تحقيق سره رسول الله ρ داآيت ولوست چې: يوم تبيض وجوه وتسود وجوه) نوده ρوفرمايل چې داهل جماعاتو او اهل سنتو مخونه به سپين شي او دا اهل بدعو او اهل اهواء مخونه به تور شي.

همداسې تطريز رياض الصالحين کې ليکلي چې:

وقال تَعَالى: ? يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ ? [آل عمران (106)]

أي: تبيض وجوه المؤمنين يوم القيامة، وتسوّد وجوه الكافرين.

وقال ابن عباس: تبيضُ وجوه أهل السنّة والجماعة، وتسودُ وجوه أهل البدعة والفرقة. تطريز رياض الصالحين ج١ ص٣١١

ژباړه: (يوم تبيض وجوه) يعني دقيامت په ورځ به دمومنانو مخونه سپين شي او دكافرانو مخونه به تور شي، حضرت ابن عباس τ فرمايي چې: داهل سنت والجماعت مخونه به سپين او داهل بدعت او اهل فرقت مخونه به تور شي

وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِك، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وسَلَّم: إِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ افْتَرَقَتْ عَلَى إِحْدَى وَسَبْعِينَ فِرْقَةً، وَإِنَّ أُمَّتِي تَفْتَرِقُ عَلَى ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ، كُلُّهَا فِي النَّارِ إِلاَّ السَّوَادَ الأَعْظَمَ. (المكتبة الشاملة /اتحاف الخيرة المهرة) ژباړه: حضرت انس بن مالک τ فرمايي چې رسول الله ρ فرمايلې دي چې: يقينا بني اسرائيل په (٧١) ډلو باندې ويشل شوي وو او زما امت به په (٧٢) ډلو باندې وويشل شي، دا ټولې ډلې به په اور کې وي مگر سواد اعظم يعنې پدوئ کې لويه ډله.

بل حديث شريف کې رسول الله ρ فرمايي: عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه و سلم: تفرقت اليهود على إحدى و سبعين فرقة و النصارى مثل ذلك و تفترق أمتي على ثلاث و سبعين فرقة (المستدرک على الصحيحين للنساپوري) ژباړه: حضرت ابوهريره τ روايت کوي چې رسول الله ρ فرمايې چې: يهودان (٧١) ډلو باندې ويشل شوي وو او نصارى هم ددوئ غوندې وو، او زما امت به په (٧٣) ډلو باندې وويشل شي.

عن أنس بن مالک قال: قال رسول الله صلى الله عليه و سلم:

تفترق أمتي على ثلاث و سبعين فرقة كلهن في النار إلا واحدة قالوا: وما تلك الفرقة؟ قال: "ما أنا عليه اليوم وأصحابي"

رواه الطبراني في الصغير وفيه عبد الله بن سفيان قال العقيلي: لا يتابع على حديثه هذا وقد ذكره ابن حبان في الثقات (مجمع الزوائد ومنبع الفوائد لنور الدين) ژباړه: انس بن مالک τ وايي چې رسول الله ρ فرمايي چې: زما امت به په (٧٣) ډلو باندې وويشل شي دا ټولې ډلې به اور کې وي صرف يوه ډله به پکې نه وي، صحابوτ وپوښتل چې دا به کومه فرقه وي؟ نو رسول الله ρ ورته وويل چې دا هغه ده چې زه پرې نن ورځ يم او زما اصحاب پرې دي.

تفترق أمتي على ثلاث و سبعين فرقة كلهن في النار إلا واحدة ما أنا عليه اليوم وأصحابي.

(طس عن أنس). (كنزالعمال) ژباړه: زما امت به په (٧٣) ډلو تقسيم شي، ټولې به په اور کې وي، مگر هغه چې زه پرې نن يم او زما اصحاب، (يعنې هغه فرقه به ترې بچ وي چې زما او زما داصحابو پيروان او ددوئ په نقش قدم روان وي).

بل حديث کې داسې دي چې: إن بنى اسرائيل تفرقت إحدى و سبعين فرقه فهلک سبعون فرقة وخلصت فرقة واحده وإن امتى ستفترق على اثنتين و سبعين فرقة تهلک احدى و سبعون وتخلص فرقة قيل يا رسول الله من تلک الفرقة قال الجماعة الجماعة {حم عن انس}( كنزالعمال للمتقى الهندى)

ژباړه: يقينا بني اسرائيل په (٧١) ډلو ويشل شوي وو، (٧٠) ډلې پکې هلاکې شوي، او يوې ډلې ترې خلاصون موند، او يقينا زما امت به په (٧٢) ډلو وويشل شي (٧١) به پکې هلاکې شي او يوه ډله پکې نجات ومومي، يو چا وويل چې يا رسول الله دا فرقه (ناجيه) به څوک وي نو رسول

الله ρورته وويل جماعت ،جماعت .يعني هغه ځ،ک چې له جماعت سره يوځای وي او شذوذيت يې نه وي خپل کړی.

إن أهل الكتابين افترقوا في دينهم على ثنتين وسبعين ملة وإن هذه الامة ستفترق على ثلاث وسبعين ملة كلها في النار إلا واحده وهى الجماعة وإنها ستخرج من امتى اقوام تتجارى بهم تلك الاهواء كما يتجارى الكلب بصاحبه فلا يبقى منهم عرق ولا مفصل إلا دخله {حم طب ك عن معاوية} 1055 -

افترقت بنو اسرائيل على احدى وسبعين ملة ولن تذهب الليالى ولا الايام (1) حتى تفترق امتى على مثلها وكل فرقه منها في النار إلا واحدة وهى الجماعة {عبد بن حميد عن سعد بن أبى وقاص} 1056 -

تفترق امتى على نيف وسبعين فرقة أضرها على امتى قوم يقيسون الامور برأيهم فيحلون الحرام ويحرمون الحلال {كر عن عوف بن مالك} 1057 -

تفترق امتى على ثلاث وسبعين فرقه كلهن في النار الا واحدة ما أنا عليه اليوم واصحابي {طس عن انس} 1058 - تفترق امتى على ثلاث

وسبعين فرقه أعظمها فتنة على 1) كذا والظاهر هو الايام بحذف لا (كنزالعمال للمتقى الهندى).

ددې مذكوروا احاديثو څخه دوه خبرې معلومېږي ،يو دا چې بني اسرائيل ۷۱ فرقو باندې ويشل شوي وو او دا وروستى امت به په ۷۲ فرقو وويشل شي، يا دا چې بنو اسرائيل په ۷۲ ډلو ويشل شوي وو او دا وروستى امت به په ۷۳ فرقو باندې وويشل شي ،بله دا چې لكه څنګه چې په اسرائيلو كې صرف يوې ډلې له هلاكت څخه نجات پيدا كړ، دا سې به محمدي ρامت كې له ډلو ټپلو جوړولو وروسته صرف يوه فرقه ناجيه وي او دا نورې ټولې به د هلاكت

كندو ته لوېږي ،چې دا نجات مله فرقه به هاغه څوک وي ،چې څوک د رسول الله ρ په سنتو او دصحابه يې كرامو رضوان الله عليهم اجمعين په تګلاروا و سنتو خپل ژوند تېروي ،همدا سې په مذكورو احاديثو كې (سواد اعظم) او په تكرار سره د( الجماعت الجماعت ) الفاظ راغلل ،چې دا ددې انتباه وركوي، چې په وروستي امت كې به هغه ډله له هلاكت څخه خلاصه وي ، چې تر نورو ستره او غټه وي او دجماعت سره التزام له دې تكراري الفاظو څخه ډېر ښه معلومېږي ،كه لږه مطالعه او تحقيق هم وشي ،نو په ډاګه به راته معلومه شي ،چې نن (سواد اعظم )همدا اهل السنت والجماعت دي او ددې فرقې غوځ اكثريت څلورګوني مذاهب تشكيلوي ،چې يوازې همدا داربعه مذاهبو پيروان هم وشميرې نو هم دامت پريكنده اكثريت جوړولای شي ،چې متقابلا معتزله ،خوارج شيعه ګان ........بخپله په لږكيو يا اقليت كې راځي او دنجات له زيرې يا بشارت څخه محروم پاتې كيږي والله اعلم.

دا اثر هم د(سواد اعظم )دنجات او ورسره ديو ځای كيدو لپاره ښه شاهد دی:

حدثنا جعفر القافلائي........ عن الحارث بن قيس ، قال: قال لي عبد الله: « يا حارث ، تريد أن تسكن وسط الجنة ، عليك بهذا السواد الأعظم» ( الابانة الكبرى لا بن بطه )ژباړه: حارث بن قيس وايې چې ما ته عبد الله وويل چې يا حارثه ! آيا ته غواړې چې دجنت په منځ كې واوسيږې !نو پرتادا سواد اعظم لازم دی. يعني ددې لوی جماعت سره پيوند اوسه !

إن بنى إسرائيل تفرقت على إحدى وسبعين فرقة وإن هذه الأمة ستزيد عليهم فرقة كلها فى النار إلا السواد الأعظم (الطبرانى ، والضياء عن أبى أمامة)

أخرجه الطبرانى فى الكبير (8/268 ، رقم 8035) . وأخرجه أيضًا : فى الأوسط (7/175 ، رقم 7202) قال الهيثمى

(7/258) : فيه أبو غالب وثقه ابن معين وغيره وبقية رجال الأوسط ثقات وكذلک أحد إسنادى الكبير .(جامع الاحاديث لجلال الدين السيوطى)

ژباړه :يقينا بني اسرائيل په (۷۱)ډلو ويشل شوي وو او په تحقيق دا امت به ددوئ څخه يوه ډله زياته شي ،چې ديوه ستر جماعت (سواد اعظم )نه په غير به دوئ ټولې به په اور کې وي.

دا لاندينی حديث شريف چې (سنن ابن ماجه) رانقل کړی ،که څه هم ځينو محدثينوېې په يوه راوي دضعف جرح کړی ،مګرفضايلوکې کمزوری حديث هم محدثين قبلوي او بل دلته امام سيوطی رح د(سواد اعظم )مفهوم تشريح کړی او ددې په استنادېې دجمهورود قول حجتيت بيان کړی، نو ځکه مو دلته رانقل کړ:

حدثنا العباس بن عثمان الدمشقي. حدثنا الوليد بن مسلم. حدثنا معان بن رفاعة السلامي. حدثني أبو خلف الأعمى قال سمعت أنس بن مالک يقول سمعت رسول الله صلى الله عليه و سلم

Y يقول ( إن أمتي لا تجتمع على ضلالة. فإذا رأيتم اختلافا فعليكم بالسواد الأعظم )

في الزوائد في إسناده أبو خلف الأعمى واسمه حازم بن عطاء وهو ضعيف. وقد جاء الحديث بطرق في كلها نظر. قاله شيخنا العراقي في تخريج أحاديث البيضاوي

[ 3950 - ش - ( السواد الأعظم ) أي الجماعة الكثيرة. فإن اتفاقهم أقرب إلى الإجماع. قال السيوطي في تفسير السواد الأعظم أي جماعة الناس ومعظمهم الذين يجتمعون على سلوک المنهج المستقيم. والحديث يدل على أنه ينبغي العمل بقول الجمهور. K ضعيف جدا دون الجملة الأولى (سنن ابن ماجه)

ژباړه : راوي وايې چې ما له انس بن مالک τنه واوريدل :چې ويل يې چې ما له رسول الله ρ څخه اوريدلې دي ،چې فرمايل يې :يقينا زما امت به په ګمراهۍ سره نه راجمع کيږي ،نو کله چې تاسو اختلاف وکوت ،نو پر تاسو باندې له سواد اعظم يا سترې فرقې سره يو ځای کيدل واجب دي.(السواد الاعظم )يعنې هغه ډله چې ډير خلک پکې وي او لوی جماعت وي ،ځکه ددوئ اتفاق اجماع ته نږدې دی ،او امام سيوطي د(سواد اعظم )په تفسير کې وايې چې: دخلکو جماعت او هغه معظم يا غټان چې په يوه منهج مستقيم سره راټوليږي ،او دې حديث کې پردې دليل دی ،چې دجمهورو په قول عمل يو مناسب کار دی.......

خوکه دابن ماجه دا روايت ضعيف هم شي ددې موضوع دافادې لپاره نور ګڼ احاديث شته .......

دې حديث کې هم دسواد اعظم سره پيوند يدل او ددې معنی شوي ده :قال رسول الله - صلى الله عليه وسلم - (افترقت بنو إسرائيل على إحدى وسبعين فرقةً - أو قال اثنتين وسبعين فرقةً - وتزيد هذه الأمةُ فرقةً واحدة كلها في النار، إلا السواد الأعظم) حسن الطبراني والبيهقي وابن أبي عاصم قلت ومعنى الجماعة: - قال الترمذي (وتفسير الجماعة عند أهلا العلم هم أهل الفقه والعلم والحديث) الاعتصام ومعنى السواد الأعظم: - المجتمعون على إمام يحكم بالكتاب والسنة

وينصر الحق وأهله. (صحيح كنوز السنة النبوية)(فتح الدير للمناوي)

ژباړه: رسول الله ρ فرمايي چې بني اسرائيل (۷۱) يا (۷۲) فرقو باندې ويشل شوي وو (دراوي شک دی) اودا امت به پرې يوه فرقه ورزياته کړي، ټولې به په اور کې وي مګر سواد اعظم، يا ستر جماعت. امام ترمذي د (جماعت) معنی کوي: چې دا داهل علمو په نزد فقهاء، علماء او اهل الحديث دي، او د سواد اعظم معنی داده چې: دوئ پداسې يوه امام يا پاچا راټول شي، چې هغه په کتاب الله او سنت الرسول باندې فيصلې کوي او هم د حق او حق پالو مرسته کوي.

مناوي رح په فتح القدير کې د حضرت ابو هريره τ ددې روايت په شرح کې چې امام ترمذي او حاکم پرې د صحيح حکم کړی دا سې ليکلي چې:

(وعليكم بالجماعة) أي أركان الدين والسواد الأعظم من أهل السنة أي الزموا هديهم فيجب اتباع ما هم عليه من العقائد والقواعد وأحكام الدين قال ابن جرير: وإن كان الإمام في غيرهم وعلم منه أن الأمة إذا أجمعت على شئ لم يجز خلافها (وإياكم والفرقة) أي احذروا الإنفصال عنها ومفارقتهم ما أمكن يقال فرقت بين الشيئين فصلت بينهما وفرقت بين الحق والباطل فصلت أيضا (فإن الشيطان مع الواحد وهو من الإثنين أبعد، من أراد بحبوحة الجنة) بضم الموحدتين أي من أراد أن يسكن وسطها وأخصبها وأحسنها وأوسعها مكانا قال في الصحاح: بحبوحة الدار بضم الباءين وسطها قال الزمخشري: ومن المجاز تبحبح في الأمر توسع فيه من بحبوحة الدار وهي وسطها وتبحبحت العرب في لغاتها اتسعت فيها (فليلزم الجماعة) فإن من شذ انفرد بمذهبه عن مذاهب الأمة فقد خرج عن الحق لأن الحق لا يخرج عن جماعتها. قال الغزالي: ولا تناقض بين هذا وبين الأخبار الآمرة بالعزلة إذ لا تجتمع الأمة على ضلالة فخرق الإجماع والحكم بالعزلة نحو الزم بيتك وعليك بخاصة نفسك لأن قوله عليكم بالجماعة إلخ يحتمل ثلاثة أوجه: أحدها أنه يعني به في الدين والحكم إذ لا تجتمع الأمة على ضلالة فخرق الإجماع والحكم بخلاف ما عليه جمهور الأمة والشذوذ عنهم ضلال وليس منه من يعتزل عنهم لصلاح دينه، الثاني عليكم بالجماعة بأن لا تنقطعوا عنهما في نحو الجمع والجماعات فإن فيها جمال الإسلام وقوة الدين وغيظ الكفار والملحدين، الثالث أن ذلك في زمن الفتنة للرجل الضعيف في أمر الدين (من سرته حسنته وساءته سيئته فذلكم المؤمن) أي الكامل لأنه لا أحد يفعل ذلك إلا لعلمه بأن له ربا على حسناته مثيبا وسيئاته مجازيا ومن كان كذلك فهو لتوحيد الله مخلصا قال ابن جرير: وفيه تكذيب المعتزلة فيإخراجهم أهل الكبائر من الإيمان فإنه سمى أهل الإساءة مؤمنين وإبطال لقول الخوارج هم كافرون وإن أقروا بالإسلام (حم ت ك عن عمر) بن الخطاب قال الترمذي حسن صحيح وقال الحاكم على شرطهما. (فتح القدير للمناوي)

لنډه ژباړه: له جماعت نه مراد ددين ارکان او داهل سنتولوی جماعت مراد دی، ددې معنی چې (عليكم بالجماعة) يعنې پر تاسو ددوئ دلارښونو پيروي لازم ده، او دوئ چې کوم عقايد، قواعد او ددين احکام درته ښايي منئ به يې، که څه هم امام ددوئ څخه نوي، خودده بايد مخالفت ونه شي، او تاسو به تر ممکن حد پورې له افتراق او ددوئ څخه له بيليدو نه ځانونه ساتئ! ځکه شيطان له يوه سره وي او له دوو څخه ليرې وي، او څوک چې دجنت منځ کې اوسيدل غواړي نو دجماعت سره دي لازم واوسي، څوک چې دامت له مذاهبو څخه جلا او خپله ځانته يې بيله لاره غوره کړه، نودا دحق څخه ليرې شو، ځکه حق له ټولنې يا جماعت سره دی.

امام غزالي رح فرمايي چي دجماعت سره دپيوند يدو او گوښه والي يا عزلت دروايا تو تر منځ کوم تضاد نشته، ځکه ټول امت په ګمراهۍ نه راجمع کيږي اوخرق الاجماع اوحکم پـه عزلـت سـره راځـي ،دعلـيکم بالجماعـة درې توجيهات کيداى شي :

اول عليکم بالجماعة يعنې په دين او حکم کې، ځکه امت په ضلالت نه جمع کيږي او داپرخلاف دهغه ده چې د جمهوروسره په تصادم کې وي، دوهم داچې مراد ترې دادی چې التزام له جماعت سره په جمع او جماعاتو کې وي ، دريم داچې داديوه ضعيف مؤمن لپاره دی چې کله فتنې وي ځوک

- إن أمتـي لـن تجتمـع علـى ضـلالة فـإذا رأيـتم اختلافا فعليكم بالسواد الأعظم.

(ه عن أنس). (كنزالعمال )ژباړه :يقينا چې زما امت به هيڅکله په ضلالت سره نه راجمع کيږي، نو کله مو چې اختلاف وليد ،تاسو باندې لازم دي ،چې لـه لوى جماعـت سره ځانونه يوځاى کړئ !

**17515**- لا يجمع الله أمر أمتـى علـى ضـلالة أبـدا اتبعوا السواد الأعظم يد الله على الجماعة من شذ شذ فى النار (الحكيم ، وابن جرير ، والحاكم عن ابن عمر. الحاكم عن ابن عباس)

حـديث ابـن عمـر: أخرجـه الحكـيم (**1/422**) ، والحاكم (**1/199** ، رقم **391**).

حديث ابن عباس: أخرجه الحاكم (**1/202** ، رقم **398**) .(جامع الاحاديث لجلال الديم السيوطى)

ژباړه :الله Ψبه زما دامت کار او امر دتل لپاره په ګمراهۍ سره نه راجمع کوي ،تاسو دسواد اعظم تابعداري وکړئ يد او قدرت دالله Ψپه جماعت باندې دی (يعنې نصرت يې له جماعت سره دی )ځوک چې له دې جماعت څخه جلا شوپه اورکې به ځانته ولويږي.

عن محمد بن سوقة) بضم المهملة الغنوى أبي بكر الكوفي العابد ثقة مرضى عابد من الخامسة قوله (خطبنا عمر بالجابية) خطبة عمر هذه مشهورة خطبها بالجابية وهي قرية بدمشق (فقال) أي رسول الله صلى الله عليه وسلم (أوصيكم بأصحابي ثم الذين يلونهم) أي التابعين (ثم الذين يلونهم) أي أتباع للتابعين وقوله بأصحابي وليس مراده به ولاة الأمور (ثم يفشو الكذب) أي يظهر وينتشر بين الناس بغير نكير (حتى يحلف الرجل ولا يستحلف) أي لا يطلب منه الحلف لجرأته على الله (ويشهد الشاهد ولا يستشهد) قال الترمذي في أواخر الشهادات المراد به شهادة الزور (ألا) بالتخفيف حرف تنبيه (لا يخلون رجل بامرأة) أي أجنبية (إلا كان ثالثهما الشيطان) برفع الأول ونصب الثاني ويجوز العكس والاستثناء مفرغ والمعنى يكون الشيطان معهما يهيج شهوة كل منهما حتى يلقيهما في الزنا (عليكم بالجماعة) أي المنتظمة بنصب الامامة (وإياكم والفرقة) أي احذروا مفارقتها ما أمكن وروى مسلم في صحيحه عن أبي هريرة مرفوعا من خرج من الطاعة وفارق الجماعة فمات مات ميتة جاهلية الحديث روى الشيخان عن حذيفة في أثناء حديث تلزم جماعة المسلمين وإمامهم قلت فإن لم يكن لهم جماعة ولا إمام قال فاعتزل تلك الفرق كلها و لو أن قبض بأصل شجرة حتى يدركك الموت وأنت على ذلك قال الحافظ قوله تلزم جماعة المسلمين وإمامهم أي أميرهم زاد في رواية أبي الأسود تسمع وتطيع وإن ضرب ظهرك وأخذ مالك وكذا في رواية خالد بن سبيع عند الطبراني فإن رأيت خليفة فالزمه وإن ضرب ظهرك فإن لم يكن خليفة فالهرب وقال الطبري اختلف في هذا الأمر وفي الجماعة فقال قوم هو للوجوب والجماعة السواد الأعظم ثم ساق محمد ابن سيرين عن أبي

مسعود أنه وصى من سأله لما قتل عثمان عليك بالجماعة فإن الله لم يكن ليجمع أمة محمد على ضلالة وقال قوم المراد بالجماعة الصحابة دون من بعدهم وقال قوم المراد بهم أهل العلم لأن الله جعلهم حجة على الخلق والناس تبع لهم في أمر الدين قال الطبري والصواب أن المراد من الخبر لزوم الجماعة الذين في طاعة من اجتمعوا على تأميره فمن نكث بيعته خرج عن الجماعة قال وفي الحديث أنه متى لم يكن للناس إمام فافترق الناس أحزابا فلا يتبع أحدا في الفرقة ويعتزل الجميع إن استطاع ذلك خشية من الوقوع في الشر وعلى ذلك يتنزل ما جاء في سائر الأحاديث وبه يجمع بين ما ظاهره الاختلاف منها انتهى (فإن الشيطان مع الواحد) أي الخارج عن طاعة الأمير المفارق للجماعة (وهو) أي الشيطان (من الاثنين أبعد) أي بعيد قال الطيبي أفعل هنا لمجرد الزيادة ولو كان مع الثلاثة لكان بمعنى التفضيل إذ البعد مشترك بين الثلاثة والاثنين دون الاثنين والفذ على ما لا يخفى (من أراد بحبوحة الجنة) بضم الموحدتين أي من أراد أن يسكن وسطها وخيارها (من سرته حسنته) أي إذا وقعت منه (وساءته سيئته) أي أحزنته إذا صدرت عنه (فذلكم المؤمن) أي الكامل لأن المنافق حيث لا يؤمن بيوم القيامة استوت عنده الحسنة والسيئة وقد قال تعالى ولا تستوي الحسنة ولا السيئة قوله (هذا حديث حسن صحيح غريب) وأخرجه أحمد والحاكم وذكره صاحب المشكاة هذا الحديث في مناقب الصحابة ولم يعزه إلى أحد من أئمة الحديث بل ترك بياضا قال القاري هنا بياض في أصل المصنف وألحق به النسائي وإسناده صحيح ورجاله رجال الصحيح إلا إبراهيم بن الحسن الخثعمي فإنه لم يخرج له الشيخان وهو ثقة ثبت ذكره الجزري فالحديث بكماله إما صحيح أو حسن انتهى (تحفة الاحوذى لمحمد المباركفورى)

ژباړه او لنډ مطلب: دتحفة الاحوذى پدې مذكور عبارت كې مباركفوري داميرالمؤمنين عمربن الخطاب τ هغه مشهوره خطبه رانقل كړې ،چې دسوريې ددمشق په (جابيه) نومې ځاى كې يې مسلمانانوته وركړه ،عمربن الخطاب τ پدې تاريخي خطبه كې درسول الله ρ هغه حديث خلكوته ولوست ،چې دخپلو اصحابو ،تابعينو او تبعه تابعينو په باب يې يې پكې ددوئ غوره قرن او افضليت باندې شهادت وركړى و ،اوهم يې دنبوت ρ هغه لارښوونه ياده كړه ،چې دجماعت سره دمسلمان په يو ځاى كيدو ،اوله تفرد يا انفراديت څخه پكې انذار راغلى و ، وروسې يې بيا دابو هريره τ هغه مرفوع روايت رانقل كړى، چې پكې په ډاكه راغلې ځوک چې له طاعته ووت او له جماعت نه جلا شو ،نو دا به پداسې مرگ ومري ،چې هغه به دجاهليت مرگ وي .....بيا يې دشيخينوحديث راوړى چې ته به دمسلمانانو له جماعت او امام سره ځان لازم كوي ،نو وايې ماورته وويل :چې كه چيرې ددوئ داسې ټولى او امام نه وي ،نوده راته وويل: چې بيا ددې فرقو څخه ځان جلا كړه ........ ابن سيرين رح وايې كله چې عثمان τ شهيد شو ،نو ابو مسعود به چې چاته وصيت كاوه، ورته به يې جماعت سره دپيوستون وصيت كاوه، ځكه ده به ويل چې هيڅكله به داسې ونشي چې الله Ψ دمحمد ρ امت په ضلالت سره راجمع كړي .......ځينې له جماعت څخه مراد اصحابو جماعت اخلي ،ځينې ترې اهل علم مراد كوي، خو امام طبري وايي چې صحيح خبره داده چې مراد دلزوم دجماعت نه هغه ځوک دي ،چې دده په طاعت كې راجمع شوي وي ،كه ورسره بيعت مات كړي له جماعت نه وځي ........

دپورتنيو عبارتونو څخه داسې نتيجه اخلو چې:

دا وروستى امت به هم په ۷۲ يا ۷۳ ډلو وويشل شي.

نورې ډلې به دوزخ ته ځي صرف يوه به پكې ناجيه فرقه وي.

ناجیه فرقه هغه ده: چې ددې حدیث مصداق وي چې ((ما أنا علیه وأصحابي )).

فتنې به پیل شي.

پرمسلمانانوبه له سواد اعظم یا لوی جماعت سره تعلق لازم وي.

دجمهوروقول سند دی اوپرې اعتماد پکاردی.

دمسلمانانوله جماعت نه بیلیدل دوزخ ته دتللو سبب دی.

ناجیه فرقه همدا اهل سنت والجماعت ده.

د((علیکم بالجماعة ))څخه مراد لزوم په دین او حکم کې دی ،یا په جمع او جماعاتو کې دی ،چې دې سره ددین سرلوړی کیږي ،یا ترې مراد دفتنو په وخت دضعیف مسلمان حالت دی ،چې ددې فتنونه بچ شي.

ددې څه مخکې چې داهل السنت والجماعت مصداق وپیژنو ،پدې معنی چې ددې ناجیي اصطلاح یا ددې نجات بخښونکې نظریې علمبرداران څوک څوک دي ؟اوڅوک په نفس الامرکې ددې (ما أنا علیه واصحابی ... )دنبوی فرمان حاملین دي ؟غوره بولوچې ددې نوم (اهل سنت والجماعت )داصطلاح په ترکیبي کلماتو یا عناصروڅه رڼا واچوو.

## اهل سنت والجماعت :

ددې اصطلاح یوه اضافي اوبله ترکیبي معنی کیدای شي.

**اضافي معنی**: داده چې هره یوه کلمه بیله بیله وشنو ،دې اصطلاح کې درې کلمات رانغښتل شوي دي (۱)اهل – (۲)سنت –(۳)جماعت.

(۱)-اهل :دعربي لغت په مشهورکتاب (المعجم الوسیط) لومړي جزءکې یې داهل معنی داسې کړې چې:اهل الشئ: اصحابه-واهل الدار-سکانها –هواهل لکذا :مستحق له....دلته درک کولای شو چې داهل کلمه(اهل سنت والجماعت )اصطلاح کې دصاحبیت یا حاملیت په معنی ده ،یا په بل عبارت داهل نه دلته موخه هغه څوک دي چې هغوئ دسنتو او دصحابوو دجماعت پیروان ،معتقذین او اتباع وي.

۲-السنة : دلغت له مخې دسنت کلمې اطلاق په حسنه او سیئه دواړو باندې مساویانه کیږي ، لکه پدې حدیث کې چې راغلي :((حدثنا أبو بکر قال حدثنا أبو معاویة عن الاعمش عن مسلم عن عبد الرحمن بن هلال العبسي عن جریر قال خطبنا رسول الله صلى الله علیه وسلم فحثنا على الصدقة فأبطأوا حتى رئي في وجهه الغضب ثم ان رجلا من الانصار جاء بصرة فأعطاها فتتابع الناس حتى رئي في وجهه السرور فقال رسول الله صلى الله علیه وسلم: "من سن سنة حسنة کان له أجرها ومثل أجر من عمل بها من غیر أن ینتقص من أجورهم شیئا ومن سن سنة سیئة کان علیه وزرها ووزر من عمل بها من غیر أن ینتقص من أوزارهم شیئا " .))(مصنف لابن ابي شیبه)

مفتي محمد نعیم صیب پخپل کتاب کې دسنتو معنی داسې کړې چې: دادلارې او طریقې په معنی سره دی ،اوسنت هغه طرزعمل ته وایې چې څنګه قرانکریم کې راغلې ده((ولن تجد لسنة الله تبدیلا ))ترجمه: او هیڅکله به ته دالله Ψدسنتو لپاره تبدیلې او تغیرونه ومومي ، او ددین په اصطلاح کې سنت دحضرت سول اکرم ρ طرز زندګي او طریق عمل ته وایې ،چې پدې کې دده ρقول ،فعل او تقریرشامل دي.دا دسنتو هغه معنی ده چې مفتي محمد نعیم صیب په خپل کتاب کې کړې ده او پر نورومفاهیمو یې سیور غوړولی.

۳-الجماعة :جماعت ټولې ته وایې ،خو دلته دې ترکیب کې ترې دصحابه کرامو ψاوسلفو صالحینوجماعت مراد دی ،لکه همدا معنی چې دعلم کلام مشهور عالم او د(شرح العقاید )شارح علامه محمدعبدالعزیزپرهاروي رح په(النبراس ) کې داسې کړې چې: ماورد به السنة "ای الحدیث"ومضی علیه الجماعة"ای السلف اوالصحابی

خاصة بقرينة ما مر والحال واحد )فسموا بأهل السنة والجماعة ای اهل الحديث واتباع الصحابة ............ النبراس ص ۳۱.-يعنې اهل السنة والجماعة هغه ځوک دي چې داسې تګلاره لري، چې په هغې احاديث وارد شوي وي او سلفو يا صحابوو ψهم پرې عمل کړی وي ،نو دلته دجماعت څخه موخه صحابه او اسلاف دي.

## داهل سنت والجماعت ترکيبي معنی :

ددې شرعي اصطلاح په اضافي معانيوکې مو دهرې کلمې بيلې بيلې معنا ګانې وپيژندلې اوس به يې په مرکب شکل تعريف وکړو :دعلم کلام نامتو امام او دشرح عقايد النسفية مؤلف علامه محمد عمر النسفي رح دشرح عقايد النسفي په خپل هغه مشهور کتاب کې چې نن سبا دمولينا نظام الدين سيالوي رح په ترتيب شوي تعليمي نصاب يا درس نظامي کې داخل اودبرصغيرنه په غير دافغانستان په ګڼون نورو ګڼو هيوادونوکې لوستل کيږي کارېږي چې: فاشتغل هو ومن تبعه بابطال رأى المعتزلة لأنهم اول فرقة أسسوا قواعد الخلاف لما ورد به ظاهر السنة وجرى عليه جماعة الصحابة فسموا أهل السنة والجماعة ص ۲......امام نسفی ددې مخکې ليکې چې :وهذا هو كلام القدماء ومعظم خلافياته مع الفرق الاسلامية خصوصا المعتزلة لأنهم أول فرقة أسسوا قواعد الخلاف لما ورد به ظاهر السنة وجرى عليه جماعة الصحابة رضوان الله تعالى عليهم اجمعين فی باب العقايد .............النبراس ددې په شرح کې داسې ليکي چې: وفی الكلام اشارة الى وجه تسمية مذهبنا بمذهب السنة والجماعة )دامام النسفي دشرح عقايد او ددې دشرحې النبراس ددواړو عبارتونو ګډ مفهوم داسې راوځي چې: داهل سنت والجماعت عقايد هغه دي ،چې له احاديثو ،سلفو اوصحابه يې کرامو له اقوالو څخه سرچينه اخلي او ورسره موافق وي ،ا مام ابو الحسن اشعری رح او هغو ملګروته يې لومړی ځل هغه وخت داهل سنت والجماعت اصطلاح وکارول شوه ،کله چې دوئ دهغو معتزلو په وړاندې ودريدل او ددوئ درأيو دابطال پروسه يې پر مخ بيوله چې هغو دسنتو او دصحابو دجماعت له تګلارو سره مخالفت کاوه ،ددې امله دوئ ته اهل سنت والجماعت وويل شول.

همهال امام ابومنصور ماتريدي رح هم داباطيلو سره مقابله پيل کړه، هغه هم ددې نا جيې فرقې نوموتی امام وپيژندل شو ،که څه په لومړي ځل امام ابوالحسن اشعري رح دمعتزله وو پرخلاف بيرغ هسک او بيا امام ابو منصور ماتريدي رح خو عربي جزيرې يا ددرې ګونو مذاهبو پيروان نن سبا امام ابوالحسن اشعري خپل امام بولي او دماوراءالنهر ،برصغير اومنځنۍ اسيا هيوادونه بيا دامام ابومنصور ماتريدي رح تر بيرغ لاندې راټول دي او علم عقايد کې يې خپل امام پيژني ،چې ددې موضوع پوره څېړنه به وروسته پر خپل ځای کې راشي او هلته به دا سکالو وشنو انشاءالله تعالی.

شيخ الاسلام محمد تقی عثماني رح دجامعه بنوري ټاون کراچۍ محدث دمفتي محمد نعيم دکتاب (اديان باطله اور صراط مستقيم )دکتاب په تقريظ کې ليکي چې دحاکم مستدرک اوترمذی هغه حديث چې ((ما أنا عليه وأصحابي ))تفسير په (سواد اعظم )باندې شوی او سواد اعظم اهل سنت والجماعت دي او همدا فرقه دسواد اعظم مصداق کيدای شي.

داهل سنت والجماعت دمفهوم په باب علامه سيد سلمان ندوي رح فرمايي چې ((اس فرقه کا اطلاق ان اشخاص پر هوتاهی جن کی اعتقادات ،اعمال اور مسائل کا محورنبي کريم ρکې سنت صحيحه اور صحابه کرام رضوان الله تعالی عليهم کا أثر مبارک هی ))دعلامه ندوي اوعلامه النسفي رح اطلاقات تقريبا سره نږدې او يو بل ته ورته وو ،ځکه ندوی صيب هم وويل چې دچا اعتقادات ،اعمال او دمسئلې محور درسول الله ρسنت او دصحابه کرامو اثار وي ،همدا اهل السنت والجماعت دي اودې نوروهم په اطلاقاتو دا مفهوم بيان کړ.

# دایران او امریکا

# ترمنځ د اړیکو نوی باب

حســـــن مومــــــند

دشام دستونزې په اړه دامریکا اوروسې ترمنځ په ژنیو کې درامنځته شوې اوسنۍ لوظنامې نه سمدستې وروسته دتمې خلاف دامریکا او ایران ترمنځ داړیکو ټینګېدو او ددواړو هېوادونو دولسمشرانو ترمنځ دخطونو دتبادله کېدلو خبرونه خپاره شول ؛ دطرفینو له لورې دمختلفو تلویزونونو سره په مرکو ،په خپلو وینا او وحتی لیکنو کې دا اعلانونه رامخې ته شول چې امریکا او ایران دایران داتومی پروګرام پرسر راپورته شوې لانجه دخبرو له لارې حل کول غواړي .

همدې شالید ته په پام سره دملګرو ملتونو په اسمبلۍ کې دغړو هېوادونو دمشرانو په سر کلنۍ غونډې کې دتوجه اصل مرکز دایران نوی کاندید شوی ولسمشر حسن روحاني و ؛ درسنیو او دیپلوماتانو نظرونه دروحاني دسفر او خطاب پرلور وو. تمه کېدله چې روحاني به په خپله وینا کې تنده او سخته لهجه نه کاروي نوځکه له اسرائیلو پرته دیو هېواد مشر هم دهغه دوینا پرمهال له جنرل اسمبلۍ نه ونه وتلو ،په تېرو وختونو او په ځانګړې توګه داحمدی نژاد په تېرو ۲ دورونو کې به چې دایران ولسمشر وینا کوله نو دا اسرائیلو ترڅنګ به امریکا او یو شمېر نور غربي هېوادونه هم له جنرل اسمبلۍ نه وتل خو داځل نه یواځې دا چې چا داسرائیلو ملګرتیا و نکړه بلکې د روحانی د وینا پر مهال د جنرل اسمبلۍ نه د اسرائیلو د پلاوي پر وتلو اسرائیل د سختو انتقادونو سره مخامخ شول او خبره تردې ولاړه چې داسرائیلو دمالې وزیر هم د لومړی وزیر نتن یاهو ددې پریکړې سره خپل مخالفت ښکاره کړ .

هو ! د ملګرو ملتونو په جنرل اسمبلۍ کې د روحاني وینا هماغسې نرمه وه لکه څرنګه چې تمه کېدله ، د پخواني ولسمشر برعکس د روحاني په لهجه کې اعتدال و ؛ هغه په څرګندو ټکو دا وویل چې د ایران اتومي پروګرام په بشپړ ډول د سوله ایزو اهدافو لپاره دی هیڅ عسکري اړخ نه لري او نه هم دایران په فوځي پلانونو کې اتومي وسلې ځای لري خصوصاً په داسې حال کې چې دایران ستر مذهبي مشر آیت الله علي خامنه ای دفتوې له مخې داتومي وسلې جوړول او کارول نا اسلامي او ناانساني ګڼل شویدي ،ولسمشر روحاني وویل چې ایران دامریکا ،نور لویدیځ او نړیوالې ټولنې دشکوکو ختمولو لپاره مذاکراتو ته چمتو دي،هغه زیاته کړه چې دملګرو ملتونو ،امریکا او نور لویدیځ له لورې پرایران دلګېدلي بندیزونه ناقانونه ،غیراخلاقي او دظلم نه ډک دي له دې وړاندې روحاني دایران هغه پخوانۍ غوښتنه تکرار کړه چې ایران داتومي انرژۍ په اړه د څېړنو حق لري نو ځکه به د یورانیمو د غني کولو لړۍ روانه ساتي خو اتومي وسلې به جوړې نکړي .

دیادولووړده چې د ایران او لویدیځ ترمنځ د روابطو د خرابوالي لامل یواځې د ایران اتومي پروګرام نه و بلکې د اسرائیلو پر ضد دایران د پخواني ولسمشر احمدی نژاد توندې ویناوې او تېزه لهجه هم داړیکو د خرابوالي عمده عامل و .

امریکا او نور لویدیځ د ایران اتومي پروګرام ته د شک په نظر ګوري او ادعا کوي چې ایران د اتومي وسلو جوړولو هڅه کوي، ایران د دوئ دا ادعا بې بنسټه بولي او وایي چې اتومي

پروګرام یې د ملګرملتونو د اصولو سره سم د سوله ایزو اهدافو لپاره دی خو د دې ترڅنګ د احمدی نژاد د واکمنۍ په تېرو ۲دورو کې څو ځلې دولتي لوړپوړو چارواکو په اشارو اشارو کې دا خبره کړې چې ایران څوک د اتومي وسلو د جوړلو نه هم نه شي منع کولای ؛ دوئ آن دا تاثر هم خپور کړی و چې د اتومي وسلو جوړولو تر منزله ایران ته ډېره لږه فاصله پاتې ده .

د ملګرو ملتونو په اداره کې د اتومي انرژۍ ځانګې امریکا او نورو لویدیځوالو هېوادونو ډېرې هڅې وکړې ترڅو ایران د خپل اتومي پروګرام نه لاس په سر شي خو ایران په خپل موقف کلک ولاړو او اصراریې کاوه چې اتومي پروګرام یې د سوله ایزو اهدافو لپاره دی او هیڅ فوځي اړخ نه لري .

امریکا او نورلویدیځ وایي چې د خپل اتومي پروګرام په اړه د ایران کړنلاره روښانه نده ، په قول او فعل کې یې تضاد دی ، دملګرو ملتونو اداره د اتومي انرژۍ ځانګې دمفتشینو سره یې هغومره تعاون ندی کړی د څومره چې ترې غوښتنه کېدله ، ایران وخت ته طول ورکوي او د موکې نه په استفادې اتومي وسلو ته د لاس رسي موندلو هڅې کوي ، امریکا او نورلویدیځ د خپلو وړاندیزونو په مقابل کې د ایران نه د روښانه او قاطع جواب غوښتونکی و نو ځکه یې د جواب نه موندلو نه پس پرې ګڼې اقتصادي بندیزونه ولګول چې له امله یې د ایران اقتصاد ته ډېر لوی زیان واوښت ، د انفلاسیون کچه ډېره لوړه شوه ، ورسره قیمتي او بې کاري هغه بې ساری حد ته ورسېدله چې په مقابل کې یې د ایران ولس ورو ورو زغم له لاسه ورکړ ؛ همدا لامل و چې د اتومي پروګرام په اړه د ایران د سخت دریځ عملي تردید او پر ضد یې د بغاوت راپورته کېدلو خطر ورځ تر بلې په زیاتېدو شو چې نښې یې د ایران په اوسنو ولسمشریزو ټاکنو کې هم راښکاره شوې ؛ دمنځني ختیځ دچاروپوهان وایي چې د روحاني بریالیتوب او د احمدی نژاد د حمایت نه د برخمن کاندید ماتې ګوا کې د اتومي پروګرام او دخپل دې پروګرام په اړه دایران د سخت موقف پر ضد یوه واقعي ریفرنډم یاټول پوښتنه وه .

نوداسې ښکاري چې د اقتصادي بندیزونو او پر ولس یې د رامنځته شویوبد اغیزو له امله د ایران حاکمه طبقه په دوه برخو ویشل شوې .یوه هغه چې په سیمې کې د ترټولو پیاوړي عسکري ځواک جوړولو په هیله او د بهرني یرغل نه د دفاع په موخه ایران اتومي ځواک جوړول غواړي ، دا هغه ډله ده چې ایران کې په بنسټپالو نومول کېږي ، دوئ ځانونه د خمیني د فکر اصیل وارثان او د ایراني انقلاب مخکښان ګڼي د ایران د ستر مذهبي مشر خواخوږي د همدوئ سره وي او د روحاني نه وړاندې د ۲ ځلې ترسره شویو ولسمشریزو انتخاباتو په نتیجه کې د احمدی نژاد په مشرۍ کې همدا ډله واکمنه وه .

دوهمه حاکمه هغه طبقه ده چې د اوسني بداقتصادي حالت نه د ایران راویستل او د امریکا سره سوله کول غواړي ؛ هاشمي رفسنجاني ، محمد خاتمي او حسن روحاني د همدې فکر مخکښان دي .

ولسمشر روحاني په خپل انتخاباتي کمپاین او هم د ولسمشر په صفت پارلمان ته په خپلې رومبۍ وینا کې د هېواد د اقتصادي ستونزو حل هغه څه وګڼل چې به ورته تر ټولو زیاته توجه کوي .

ددې تر څنګ روحاني دا هم ویلي و چې هغه د لویدیځ سره د ښو روابطو ټینګول غواړي .

حسن روحاني چې د خپل انتخاباتي کمپاین پر مهال څه ویلي و داسې ښکاري چې اوس یې خامخا عملي کول غواړي ؛ په کورنیو چارو کې د ګڼو بدلونونو راوستلو ترڅنګ لویدیځ سره د روابطو د ښه کولو او اتومي لانجې د حل په اړه هم هغه حېرانونکي ګامونه پورته کړل .

روحاني وایي چې د ۳ نه تر ۶ میاشتو په موده کې دننه دننه د نړیوالو ځواکونو سره د خپل هېواد د اتومي پروګرام په اړه د ستونزې حل غواړي .

د یادولو وړ ده چې ایران د ملګرو ملتونو د امنیت شورې د پنځو دائمي غړو او جرمني سره د خپلو اتومي پروګرام په اړه په خبرو بوخت دی چې تر اوسه یې کومه نتیجه نده ورکړې ، د ملګرو ملتونو د اتومي انرژۍ د ادارې تر څنګ ګڼو ادارواو هېوادونو هڅې وکړې چې ایران د خپل اتومي پروګرام د پرمخ بیولونه د لیبیا په څېر لاس په سر کړي خو ایران د خپل موقف نه تېریدونکی نه و ، امریکا او متحدینو یې تل دا ویل چې ایران اتومي وسلو ته لاس رسي غواړي او ددې لپاره یې په اتومي بټیوو کې په لوړه کچه د یورانیمو د غني کولو لړۍ جاري ساتلې ده ،خو ایران تل دا ادعاوې ردولې او ویل به یې چې اتومي پروګرام یې سوله ایز دی او هیڅ عسکري اړخ نه لري . اوس په ښکاره داسې ښکاري چې حالت بېخي بدل شویدي ، د منځني ختیځ د چارو ډېر پوهان وایې چې اوس په ایران کې د احمدی نژاد د دور برعکس کړنلاره رامنځته کېدونکې ده .

د ولسمشر په چوکۍ د کېناستلو سره سم روحاني د امریکا ولسمشر اوباماته په یو لیکل شوي خط کې لیکلي و چې هېواد یې د اتومي وسلو دتیاري خلاف او یوائې دسوله ایزو اهدافو لپاره دیوارانیمو دغني کولو پلوي دی.

دامریکا ولسمشر ته دحسن روحاني دپټ خط لیکلو پېښه څه کوچنۍ پېښه نه وه ؛ دا دایران بهرنۍ تګلارې کې لوی بدلون و نو طبعي ده چې دایران دستر مذهبي مشر خامنه ای حمایت او لارښوونه به ورسره مل وه.اودا چې خامنه ای روحاني ته دامریکا سره دمخامخ مذاکراتو اختیار ورکړ نو داهم په خپل ذات کې ډېر لوی اقدام دی او ددې نه هم ستر او حېرانونکی اقدام هغه و چې کله خامنه اي د امریکا سره د مذاکراتو لپاره د لاربرابرولو په موخه دا فتوی صادره کړه چې ایران به هیڅکله هم اتومی وسلې جوړې نکړي ځکه چې اسلام د عامه وژونکو وسلو د جوړولو او کارولو اجازه نه ورکوي .

داسې ښکاري چې امریکا ولسمشر بارک اوباما د ایران د ستر مذهبی مشر (چې د هېواد اصل واکمن ګڼل کېږی ) په خبره کې وزن محسوس کړ او پدې هیله یې د سوله ایزو هدافو لپاره د یورانیمو د غني کولو حق اصولاً ومنلو چې ایران به د اتومي وسلو د جوړلو نه لاس په سر شي امریکا غوښتل چې پدې اړه د ملګرو ملتونو په کلنۍ غونډې کې دامریکا او ایران دولسمشرانو ترمنځ لنډه ناسته ترسره شي خو داهیله یې ترسره نه شوه . ایران ته دراستنېدو نه پس په تهران کې حسن روحاني خبریالانو ته وویل چې نیویارک ته دتللو نه وړاندې او په نیویارک کې دقیام پرمهال دامریکا دولت هیله څرګنده کړې وه چې ددواړو ولسمشرانو ترمنځ دې یوه ناسته ترتیب شي خو دایران له لورې ورته وویل شول چې اوس ددې لېدنې لپاره مناسب تیاري نه لري ،بیا دامریکایانو له لورې داتجویز رامخې ته شو چې دملګروملتونو دسرمنشي له لورې په تیارې شوې میلمستیا کې دګډون پرمهال دې ددواړو ولسمشرانو ترمنځ دستړې مشې لپاره لار برابره شي خو ایرانیانو په نرمۍ سره دامریکایانو دا غوښتنه هم رد کړه،،

داوباما ویاند وویل چې دروحاني دانکار لامل به شاید دسخت دریځو ویره وه .

سره له دې چې دروحاني او اوباما ترمنځ لېدل ونه شول او نه یې هم یو بل ته لاس ورکړ خو په نیویارک کې دقیام په روستۍ ورځ دستمبر په ۲۷ مې نېټې ددواړو ولسمشرانو ترمنځ ۱۵ دقیقې تېلفوني رسمي خبرې ترسره شوې چې دادخپل نوعیت ډېر ستر بدلون دی ؛ دا ۳۴ کلونه پس دامریکا او ایران ترمنځ په دومره لوړه کچه اړیکه وه چې ټینګه شوه ؛ دایران دانقلاب دبریالیتوب نه پس چې په ۱۹۷۹ م کال کې دایران محصلینو دامریکا سفارت ترخپلې قبضې لاندې راوست دهاغه وخت نه ددواړو هېوادونو ترمنځ دیپلوماتیکې اړیکې شلېدلې وې نو ځکه اوسنۍ رسمي اړیکه ددیپلوماسۍ ډګر کې ستر پرمختګ ګڼل کېږي.

هو! دا ددواړو هېوادونو ترمنځ د اوږدې انقطاع نه پس داړیکو دبیا ټېګېدو نوی باب دی نو ددواړو لپاره یو نوی پرمختګ دی خو

نه لا دستونزې يقيني حل رامنځته شوېدی او نه هم دروحاني اوسنۍ هڅې دټولو ايرانيانو لپاره په خوښۍ دمنلو وړدي ؛ دسټمبر په ۲۸ مې نېټې چې کله ولسمشر روحاني هېواد ته راستون شونو معلومه شوه چې دنويوهڅو اوپرمختګونو په اړه يې دايران ټول ولس مطمئن نه و ؛ دتهران هوائي ډګر ته چې دروحاني داستقبال لپاره دهغه ګڼ شمېر پلويان راغلي وو ؛ ترڅنګ يې يوه لويه ډله داسې خلک هم وو چې دهولو کاسټ (دجرمني نازيانو پرلاس ديهودو دقتل عام ددروغو جوړ شوی داستان )په حق کې دخولې نه دڅو تورو دويستلو له امله يې دروحاني پرضد مظاهره کوله او دروحاني موټر يې په هګيوو او بوټانو وويشتلو .

که خبره راټوله کړو نو ويلي شو چې اوس مهال دامريکا په مقابل کې دايران دنرمۍ ښکاره کولو اونويو اړيکو ټينګولو نه دايران هدف داسرائيلو او امريکا داحتمالي يرغل مخنيوی او پرې دلګېدلو اقتصادي بنديزونو پورته کول دي خو ددې هدف ترلاسه کول اسان کار هم ندی ؛ترکومه چې دحملې دمخنيوي خبره ده نو حقيقت دادی چې امريکا په اوسني حالت کې په ډېر احتياط مخ په وړاندې ځي ،دواشنګټن له لورې اوسنی پرمختګ هغسې استقبال نه شو لکه څرنګه يې چې تمه کېدله ؛ دا سمه ده چې امريکا به دخبرو اترو له لارې دمسئلې حل غواړي خو امريکا دايران اتومي پروګرام دله منځه وړلو لپاره لاهم ځانته دحملې حق ور کوي ؛دمنځنې ختيځ او شمالي افريقا په اړه دتګلارې بيانولو په ترڅ کې اوباما روښانه کړه چې هرځای ديپلوماسي دناکامۍ سره مخامخ کېږي امريکا به هلته فوځي مداخلت کوي ؛دامريکا ولسمشر په څرګندو ټکو وويل چې دايران داتومي لانجې سوله ايز حل غواړو خو هيڅکله به هم ايران داتومي وسلو جوړولو ته پرېنږدو.

داسرئيلو لومړی وزير نتن ياهو دتېر په څېر داځل هم په يوائې ځان پر ايران ديرغل کولو خبره تکرار کړه خو ټوله نړۍ پوهېږي چې اسرائيل په يوائې ځان پرايران دداسې يرغل توان نه لري چې ورته پکې پخپله لوی زيان ونه رسېږي ،او په داسې حالت کې چې دايران او امريکا ترمنځ مخامخ اړيکې پيل شوي داسرائيلو حمله به دايران او امريکا ترمنځ جنګ ته لار برابرول يا لږ ترلږه داړيکو خرابول وي چې دامريکا دخفګان سبب به وګرځي او اسرائيل دامريکا دومره خفه کول نه غواړي .

او ترکومه چې دامريکا او ملګرو ملتونو له لورې دلګېدلو بنديزونو دلرې کېدلو خبره ده نو سره له دې چې دا بنديزونه دظلم نه ډک او دنړيوالو قوانينو خلاف دي خو ماته داسې ښکاري چې که اوباما وغواړي بيا به هم دامريکا کانګرس په اسانه ددې بنديزونو دلرې کولو اجازه ورنکړي ؛ايرانيان بايد پدې اړه زيات خوشبين ونه اوسېږي ؛ دکانګرس له لورې لګېدلي بنديزونه يوائې کانګرس لرې کولای شي او په کانګرس دولسمشر هيڅ زور نه رسېږي لکه دصحت په اړه چې هغه دخپل تجويز په منظورولو کې پاتې راغلو .

همدا راز دملګروملتونو دامنيت شوری له لورې لګول شوې بنديزونه داوباما اداره او نه هم هغه نړيوال ځواکونه چې پرايران يې په اقتصادې بنديزونو لګېدلو کې ونډه لرلې يو هم دا بنديزونه ژر او په اسانه نه شي پورته کولای ؛ څه فکر کوم چې دامنيت شوری به خامخا دايران نه غوښتنه کوي چې که رښتيا هم دايران اتومي پروګرام دسوله ايزو اهدافو لپاره وي نو بايد دملګروملتونو داتومي انرژۍ داداري مفتشينو ته اجازه ورکړي چې دايران ټول اتومي تاسيسات له نېږدې نه معاينه کړي .

دا به وخت وښايې چې ايران به دا غوښتنه ومني او که نه ؟په لږه موده کې به روښانه شي چې دامريکا سره داړيکو ټينګولو اوسني اقدامات په مصلحت ولاړ او دوخت عاجله غوښتنه ده او که حقيقي تګلاره ده چې په ترځ کې يې دې هېواد داتومي وسلو دجوړولو پرضد خپل موقف ښکاره کړ؟؟؟

# د" سنځري " هیښوونکی فدایي برید پیچلی او جالب پلان یې !

ترتیبونکی قاري محمد یونس

د اکتوبر پر څلورمه امریکایانو د کندهار د ژړۍ ولسوالي د کندهار تر ټولو ولسوالیو با امنه ولسوالي اعلان کړه او تر اعلان یوه ورځ وروسته د یادي ولسوالۍ د سنځري سیمي په انارک دره کي د یوه کمساري استشهادي برید تلفات امریکایان یوه داسي ګونګ اعتراف ته مجبوره کړل چي دغي ولسوالۍ ته د تر ټولو باامنه ولسوالۍ نوم ورکول لویه اشتباه ده.

ددغه اتلوال استشهادي برید د بشپړو معلوماتو لپاره موددغه برید د تنظیموونکي محترم حافظ یاسین صاحب ، د نوموړو فدایانو د حفاظتي ګروپ له مجاهدینو او د فدایانو له کورنیو سره مرکي ترسره کړې چي له دوي سره دمرکو پر بنسټ مو درنو لوستونکو ته دغه راپور چمتو کړیدی.

### ددغه استشهادي برید ترسره کوونکي فدایان څوک وو؟

څلورکاله مخکي دکندهار ولایت داوسیدنکو هریو محمود ( ثناء الله ) او بي بي عالمي نېکمرغه واده وسو او ددغه اسلامي تړون له مخي یې خوږ او له محبته ډک ژوند پیل کړ، محمود ته الله جل جلاله ښه کافي مال ورکړي وو او د ژوند نژدې ټولي اسانتیاوي ورته مهیا وې، مېرمني یې هم له پښتني او اسلامي دود سره سم په کور کي هوسا ژوند لاره او له خپل خاوند سره یې خوشحاله ژوند تېراوه ، هغه څه چي دوي یې له خپل هوسا دو نیوي ژوند سره سره ارام ته نه پرېښودل هغه ددوي اسلامي غیرت او له ولولو ډک احساس او دابدي اخروي ژوند خوشال جوړول وو ، دوي به هره ورځ د یرغلګرو کفارو او ددوي د ګوډاګیانو د ظلمونو کیسې اورېدې، هره ورځ به یې دا خبر اورېده چي د فلاني په کور کي فلانی شهید سویدی او د امریکایانو په چاپو کي د مظلومانو بندیانول، په شهادت رسول او د تورسریو او پتمنو مېرمنو ژړول بالآخره ددوي په زړونو کي د انتقام لمبې بلي کړې، یوولس میاشتي مخکي یې فیصله وکړه چي د یوې ګډې فدایي حملې پواسطه به له دغو وحشي امریکایانو د مظلومانو انتقام اخلي.

### دبرید لپاره چمتووالی

ددغه استشهادي برید تنظیموونکی حافظ یاسین وایي: امریکایانو زموږ پر ملګرو څو واره چاپي وهلي وې او دوي یې بندیان کړي وه ، کله چي زموږ ملګري بیرته د الله جل جلاله په فضل راخلاص سول نو له هغوي څخه دمعلوماتو پربنسټ داخبره معلومه سوه چي امریکایانو زما(حافظ یاسین )دتلیفون شمېره کشف کړېوه او کله چي به ما له هغو ملګرو سره خبري کولې نو دوي به سمدستي هغوی تعقیب کړل او بیا به یې چاپه وربانددي وهله، کله چي زه پوه سوم چي زما تلیفون کشف دی او پواسطه یې زماملګري بندیان سوي نو په زړه کي مي له امریکایانو څخه د انتقام اخیستلو سختي ولولې په غورځنګ سوې او له الله جل جلاله څخه مي خواست کاوه چي دغه ارمان



راپوره کړي ترڅو په همدغه کشف نمبر دوي ته سخت ګوزار ورکړو، لکه چي الله جل جلاله مي دعاء قبوله کړېوه يوولس مياشتي مخکي دوه داسي په اسلام او قرآن سرښندونکي جوړه فدايان راسره معرفي سول چي يوېي خاوند او بله يې مېرمن وه، موږ فدايي محمود ( ثناء الله) ته وويل چي په استشهادي عملياتو کي ستا ګډون په اړه کومه ستونزه نسته خو ستابي بي ته ووايه چي تر خپلي ارادې تېره سي، ځکه د اسلامي امارت مشر تا به د ښځو د فدايي عملياتو په اړه له ډېر زيات احتياط نه کار اخلي ځکه چي ډېر اړخونه يې سنجوي او دا ويره وي چي الله دي نه کوي هدف او انفجار ته تر رسيدو مخکي د دښمن لاس ته ور نشي او بندي نشي محمود چي کله خپلي بي بي ته زموږ پيغام ورساوه نو بي بي داسي ځواب ورکړيوو چي موږ يې نور لاجوابه کړو، بي بي يې ورته ويلي وه:

"کافران هره ورځ زموږ پر کورونو چاپي وهي، زموږ له ورونو او خويندو سره ظلمونه کوي، زه له دوي څخه د انتقام په موخه ستا سره ګډه فدايي حمله کوم، امريکايان چي سره کافران دي خپلي ښځي دلته د جنګ لپاره راولي او زموږ خلک را شهيدانوي نو آيا که زموږ ځيني نارينه بېغيرته دي او له کفارو سره جهاد نه کوي نو زه هم ددوي په شان بېغيرته سم او پر کور کښېنم؟ د کافرانو ښځي چي پر خپل کفر دومره غيرت کوي او زموږ سره زموږ په کور کي جنګېږي نو زه ولي پر اسلام دومره غيرت ونکړم چي خپل ځان د الله جل جلاله په لاره کي قربان کړم؟ زما آخره فيصله داده چي زه هيڅکله له خپل نيت څخه نه تېرېږم او که د خداي جل جلاله رضاوه خامخابه فدايي حمله کوم."

حافظ ياسين وايي: د جوړه فدايانو له ټينګ عزم وروسته موږ پر دې فکر کاوه چي داسي استشهادي عمليات څنګه ترتيب کړو چي دواړه فدايان(خاوند او بي بي ) په عملياتو کي سره شريک وي.

## هېښوونکی پلان

حافظ ياسين وايي: د بريد د ځاي معلومولو، د اړوندو ضرورياتو له پوره کولو او له مشرانو ملګرو سره تر مشورو وروسته مو پلان داسي ترتيب کړ:

د کندهار ولايت ژړۍ ولسوالۍ د سنځري سيمي دانارک درې ددوو غونډيو په منځ کي د کوچيانو يو موسمي خرابه کور موجود دی؛ دا کور بايد ورغوو او يوه خيمه هم پکښي ودروو، وروسته فدايان د کور له ځينو لوازمو سره هلته وليږو لکه ځيني کالي، د ماشومانو زانګو او داسي نور... ، بيابه د فدايانو د محافظتي ګروپ مجاهدين د کور پرشاوخوا د پرسونل ضد ماينونو يو کمربند را ګرځوي د کور په دننه او په هغو ځايونو کي به هم ماينونه ځاي پرځاي کېږي چي د څرخکو کښېنستلو ګمان پرې کېږي، فدايانو ته به د قوي بارودو داسي ځانګړي صدرۍ(واسکټ) جوړېږي چي هره ښځه جلا جلا پرې پوښ سي ځکه امريکايان د چاپي پرمهال د کور او سېدونکو ته په سپيکر کي وايي چي له خونو را ووزئ! کله چي د کور اوسېدونکي راووزي نو بيا له لېري ځايه ورته وايي چي لمن پورته کړئ! کله چي د کور اوسېدونکي لمن پورته کړي نو دوي مطمئن سي چي فدايي مجاهدين نه دي، نو بيالکه حيوانان يودم لس پنځلس کسه پريوه کس راټول سي او له سختو وهلو وروسته يي سترګي او لاسونه ور وتړي، پلان داسی دی چي له فدايي مجاهد محمود سره به په کشف نمبر د ورځي لخوا پرلپسي اړيکي نيول کېږي

**چي هره ښځه جلا جلا پرې پوښ سي ځکه امريکايان دچاپي پرمهال دکور اوسېدونکو ته په سپيکر کي وايي چي له خونو را ووزئ! کله چي د کور اوسېدونکي راووزي نو بيا له لېري ځايه ورته وايي چي لمن پورته کړئ! کله چي د کور اوسېدونکي لمن پورته کړي نو دوي مطمئن سي چي فدايي مجاهدين نه دي،**

ترڅو د محمود نمبر کشف او امریکایان پر دغه کورچاپه ووهي، کله چي امریکایان دلته چاپه ووهي نو لومړی به فدایي محمود د کورپه دننه کي اوپرشاوخوا را څرخېدلي ماینونه عیار کړي اوبیابه دده وي له معمول سره سم ورته را ووزي او لمن به ورته پورته کړي کله چي امریکایان مطمئن سي او دده پرخوا ښه رانژدې سي نو دی به خپلي صدرۍ ته انفجار ورکوي، له فدایي برید ورسته د کور پرشاوخوا امریکایان د چاودني له ځایه تښتي چي پر عیارشویو ماینونو به خېږي او تلفات به یې نور هم زیاتېږي، وروسته بیاچي کله امریکایان د خپلو مړو او ټپیانو په لیږدولو کي سره راټول سي دمحمود بي بي به له کوټې ورباندي راوزي او استشهادي حمله به ورباندي کوي.

## امریکایان خپلي تکنالوژۍ مرګ ته راوبلل

امریکایانو ډېرځلي د مجاهدینو د موبایل شمېرو له کشف وروسته پرهغوي چاپي وهلي او شهیدان یا بندیان کړي یې دي خودا ځل معامله سرچپه وه، نمبر کشف وو خو د مجاهدینو د شهیدولو پرځای دوی د اور او بارودو خوراک سول.

حافظ یاسین وایي: استشهادي مجاهدینو پوره یوولس میاشتي انتظار وکړ، د پلان ټولي برخي په څومیاشتو کي بشپړي سوې، پر سرای شاوخوا د ماینونو د کمربند راګرځول، د سرای په داخل کي د ماینونو ښخول، د هلیکوپترو دناستي په ځای کي دماینونو ځای پرځای کول او د سرای د یوې خوني ترمیم شل ورځي وخت ونیو، د پیاده امریکایانو لپاره ټول اویا کړۍ ماینونه ښخ کړل سول چي هریوه یې د دوو ماینونو زور درلود ځکه قوي او ډېر بارود پکښي کارسوي و، لدې وروسته فدایي مجاهدین له پلان سره سم ټاکل سوي سرای ته ورسېدل او هلته یې دیوې کورنۍ په شکل ژوند پیل کړ، استشهادي بي بي د سرای په منځ کي زانګو ودرول او څوډبري یې پکي زنګولې، فدایي محمود به د ورځي لخوا څو ځلي زما له کشف نمبر سره رابطه کول، فدایانو په سرای کي ټولي لس ورځي تېري کړې، د لسو ورځو جریان یې داسي وو چي د شپې لخوا به ټوله شپه د چاپې په انتظار د برید لپاره چمتو وه او د ورځې ډېره برخه به یې خوب کاوه، د فدایانو دمحافظتي ګروپ مجاهدینو به د ورځي پرسرای پیره کول او د شپې به یې تقریباً د دریو کیلومتروپه فاصله په یوه غارکي د سرای ننداره کول.

د اکتوبر دمیاشتي پنځمه نېټه وه چي امریکایانو دغه سرای د خپلي چاپې هدف وګرځاوه او د شپې پرلسو بجو یې چاپه ورباندي ووهل، د فدایانو د حفاظتي ګروپ یوتن مجاهد وایي: امریکایان د څلورو ډَبْڼهبکو څرخکو (چېنوک هلیکوپترو) پواسطه له سرای سره نژدې پیاده کړل سول او په لږ وخت کي یې سرای ته ځانونه ورسول، دی وایي: د څرخکو له ناستي لس دقیقي تېري سویوې وې چي یو زوروه چاودنه وسوه ورپسي لږ وروسته مو د اتو نورو زوررورو چاودنو ږغونه واورېدل، له دغو چاودنو وروسته پنځلس دقیقې لا نه وې پوره سوي چي یوه بله زوروره چاودنه مو واورېدل او له هغه وروسته مو د څلورو نورو چاودنو ږغونه واورېدل.

**داسلامي امارت مشر تا به دښځو دفدایي عملیاتوپه اړه له ډېر زیات احتیاط نه کار اخلي ځکه چي ډېر اړخونه یې سنجوي او داویره وي چي الله دي نه کوي هدف او انفجار ته ترسیدو مخکي ددښمن لاس ته ور نشي او بندي نشي**

حافظ یاسین وایي: لومړی چاودنه له پلان سره سمه شهید محمود تقبله الله ترسره کړه او دا چي له چاپې لس دقیقې وروسته ده فدایي حمله کړې له پلان سره سم ده ته د امریکایانو پر ښه رانژدې کېدو دلالت کوي، هغه اته



چاودني چي وروسته مجاهدينو اوربدلي د وارخطادښمن په ماينونو کي د ختلو له امله رامنځته سويدي، او دوهمه زوروره چاودنــه د شــهيد محمــود د شــهيدي بــي بــي تقلبهماالله استشهادي بريد وو ځکه له پلان سره سم بي بي بايد هغه وخت بريد کړيواي چي دوي دخپلو مړيو او ټپيانو په انتقال بوخت سي ، نو پنځلس دقيقي وروسته حمله د همدې پلان دعملي کولو نښه ده، له دغي زوروري چاودني وروسته ځلور نوري چاودني د هغو پرسونل ضد ماينونو له امله رامنځته سوي چي د سراي په دننه او شاوخوا کي ځاي پرځاي سويوه.

د فدايانو د حفاظتي ګروپ مجاهد وايي: چاپه چي د شپې پر لس بجې شروع سول له فدايي حملو او چاودنو وروسته د امريکايانو د مړيو او ټپيانو د انتقال لپاره د امبولانس څرخکو پروازونه هم شروع سول چي د سهار تر اذانو يې پرلپسې پروازونه کول.

## په دغه استشهادي بريد کي د امريکايانو تلفات

د فدايانو د حفاظتي ګروپ مجاهد وايي: موږ لمرڅرک پداسي حال کي چي د امريکايانو طيارې په لوړه فضاکي ګرځېدې د فدايانو سراي ته راغلو، سراي ټول هوار سويوو، د سراي نس او شاوخوا سيمه ټوله په وينو لړلې وه ، تر ټولو ډېري ويني او د امريکايانو د بدن غړي په سراي کي داخل پراته وه، د سراي په د ننه کي چي موږ د امريکايانو نيم بدنونه ، لاسونه او پښې وشمېرل ټول اووه لويي ټوټې پرتې وي او د سراي په د ننه او شاوخوا کي تر دوو سوو ډېري دبدن ټوټي او کوچني اندامونه لکه غوږونه اودلاسو ګوتي پاشلي وه، دوولس د ماينونو دچاودنو ځايونه ښکاره وه، د تويو سويو وينو له ځايونو او د وينو له مقدارنه دا معلومېدل چي په دوو فدايي بريدونو کي له پنځلسو څخه تر شلو پوري امريکايان مړه سويدی او په دوولسو چاودنو کي له شلو زيات امريکايان وژل سوي دی، د ټپيانو شمېر تردې ځکه زيات دی چي زموږ تجربه ده کله چي د امريکايانو يو ټانک پر ماين وخېږي نو يوازي يوه امبولانس څرخکه ورته راځي او دڅو دقيقو په ترڅ کي مړي او ټپيان وړي او له لسو بجو څخه د سهار تراذانو پوري چي له اووساعتو هم اوړي د امبولانس هليکوپترو پرلپسې پروازونه ددې ښودنه کوي چي زيات شمېرامريکايان له وژل سوو سره ټپيان سوي هم دي.

## له وارخطادښمن څخه پاته سوي فوځي تجهيزات

د فدايانو د ساتندوی ګروپ مجاهد وايي: کله چي موږ د بريد په ساحه کي ګرځېدو نو مو يو شمېر امريکايي فوځي تجهيزات هم پيداکړل، په سيمه کي له لسو زيات تخريب سوي امريکايي ټوپکان خواره واره پراته وو، درې تقريباً تخريب سوي وېډيويي کېمرې هم وموندل سوې خو هغه څه چي د ګټي اخيستلو وړ وه او روغ رمټ مجاهدينو غنيمت کړل پدې ډول دي:

- يو ميل امريکايي شل ډزی ټوپک
- يوه پايه هاوان
- يو داوړې د سرتوغندی ويشتونکی راکټ
- يو ميل ايم فور(M4)امريکايي ټوپک
- درې پايې د شپې دوربينان
- په زياته اندازه مهمات او د مرميو شاجوران

## د استشهادي بريد مرکز ته دامريکايانو دراتګ ناکامي هڅي

د استشهادي بريدونو په اوله ورځ امريکايانو هڅه وکړه چي د يوې قوي په مټ دغه سراي ته ځان ورسوي او د خپلو پاتي شونو لټون وکړي خوبيرته وګرځېدل په دريمه ورځ يې بيا له اربکيانو سره يوځاي هڅه وکړه خو په لاره کي د ځاي پرځاي شوي ماينونو له درنو چاودنو سره مخ سول، دوې چاودني پر امريکايانو او دوې پر اربکيانو ترسره سوې، له چاودنو وروسته بيرته وګرځېدل او تر اوسه الحمدلله ياد مرکز ته په ورتلوندي توانېدلي، که فرضاً ورسي هم نو هغه عيارماينونه چي له مخکني بريد څخه همداسي عيار پاتي دي دروند استقبال به يې وکړي ان شاء الله.

## د استشهادي مجاهد پیغام :

شهید محمود تقبله الله له بریده څو ورځي مخکي خپل وصیت او مسلمه امت ته خپل پیغام ثبت کړی چي د دغه برید د تنظیموونکي حافظ یاسین صاحب لخوا موږ ته وسپارل سو ، د پیغام لوي ټکي یې دادي :

(( محترمو مسلمانانو ! زه الحمد لله لویه کورنۍ او ډېرمال لرم، په کورنۍ او ټولنه کي عزتمن ژوند لرم خو دا ټول د الله جل جلاله د جنت په مقابل کي سودا کوم، جنت ته هغه وخت سړی داخلېدای سي چي الله جل جلاله راضي کړي، او الله جل جلاله هغه وخت راضي کېږي چي ټول امرونه یې پرځای کړل سي، نو جهاد د نورو فرائضو په شان د الله له لوري پر موږ او تاسو فرض دی ، الله جل جلاله د جهاد امر راته کړی دی نو هغه څوک چي د الله جل جلاله دغه امرعملي کړي الله جل جلاله به جنت ورکوي ان شاء الله.

مسلمانانو ورونو ! د جهاد په لاره کي خپل مالونه، ځانونه او اولادونه قربان کړئ ، د کفارو د تبلیغاتو پروا مکوئ، خپل مجاهدین ورونه په خپلو مالونو سره تقویه کړئ او ملا یې ور وتړئ ))

## آیا دا عقل مني؟

په افغانستان کي د امریکایي قواوو پخواني قوماندان جنرال مک کرسټل له (USA Today) ورځپاڼې سره په مرکه کي پوښتنه کړې ده چي آیا کوم آمریکایی به دا وومني چي وزیر دفاع پاڅیږي او اوباما او د هغه د ګوند غړي وتړي او زندان ته یې واچوي او هغه خلک په مرمیو وولي، ویې نیسي او ویې ځکوي چي اوباما ته یې رایه ور کړې ده، بیا د مشرانو جرګه او پارلمان لغو کړي، له ټاکنو پر ته یوه کمیسیون ته واک ور کړي او هغه بیا د هیواد لپاره اساسي قانون جوړ کړي. !

آیا دا عقل مني؟

همدغه څه موږ په مصر کي تاییدوو.

ما چي په سیاست کي یوه خبره وکړه اوباما له کاره ګوښه کړم او دلیل یې دا وو چي ته جنرال یې په سیاست کي دې مداخله وکړه، خو نن په مصر کي سیسي په منتخب او قانوني حکومت کودتا وکړه او اوباما یې تاییدوي.

موږ باید امریکایان پوه کړو چي مصریان هم ستاسي په څیر ژوند غواړي.

موږ ولي له دموکراسیو سره جنګیږو او نه یې پرېږدو چي په پښو ودرېږي ؟.

موږ په افغانستان کي په زر ګونو انسانان ووژل، لاس مي ونیو او ومې ویل: موږ په افغانستان کي پر مسلمانانو نشو برلاسه کیدای، همدغه خبره وه چي زه یې له کاره ګوښه کړم، حالات اوس هم هماغسې دي، چي زما په وخت کي وو، او حالاتو هم زما اند تایید کړ، زه د خپلې تجربې پر اساس اوباما ته وایم چي: په مصر کي دې په بایلونکي اس لاس ایښی دی، مسلمانان عقیده او دین لري چي ښه کلک پرې ولاړ دي، دفاع ترې کوي، او دښمن ته نه تسلیمیږي، او په مصر کي به هیڅ کله هم مسلمانانو ته ماتې ورنه کړئ. !

## لومړی مقام

افغانستان د نړیوالو جاسوسانو په درلودلو سره لومړی مقام وګاټه
افغانستان په نړۍ کي د لومړۍ درجه فاسد نظام په درلودلو.
د بندیانو په تعذیب کي .
قضایي سیستم یی د نړۍ په کچه تر ټولو له درغلیو ډک، د میلونونو ډالرو په بډو اخیستلو او نا اهلتوب کي.
د تاریخی اثارو په پلورلو کي.
د کانونو په لیلامولو کي.
دجنګ سالارانو او جنایتکارانو په ساتلو او عزت ور کولو کي.
دچاپیریال په ککړتیا کي.
دملي ګټو او ارزښتونو په ځای د شخصي ګټو په ترلاسه کولو کي.
دملي او اسلامی احساس په ځای په غلامی کي او.......................
.............. کي یی هم لومړی مقامونه وګټل.
(مُشت نمونه خروار است)

# چرا گوشت خوگ حرام است؟

## برگرفته از اعجاز علمی در قرآن و حدیث

قرآن کریم، انواع غذاهایی را که برای جسم و روح انسان مفید و ذائقه ی او را نیز ارضاء می کند حلال شمرده است، و از طرفی انسان را از خوردن غذاهای مضر و پلید نهی می کند.

ممنوعیت از غذاهای غیر صحی و تنفر آمیز یکی از خدمات دین مبین اسلام به بشریت است، زیرا در شرایطی که میکروب کشف نشده بود و اثرات غذاهای پلید در به وجود آوردن بیماری ها روشن نبود، آنها را ممنوع اعلام نموده و این خدمت بزرگی در جهت سلامتی انسان ها می باشد.

یکی از حیوان هایی که مصرف گوشت آن در فهرست غذاهای حرام قرار گرفته است گوشت خوک می باشد که در قرآن از آن به «لحم خنزیر» یاد شده است:

{إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ و...} خدا، تنها (خوردن) مردار و خون و گوشت خوک و آنچه را که به هنگام سربریدن نام غیر خدابران بانگ زده شده حرام کرده است.

که مضمون این آیه، در چهار سوره ی قرآن آمده است و علت تاکید قرآن بر این مطلب، اهمیت موضوع و خطرات جسمی و روحی مصرف گوشت خوک و نیز آلودگی جامعه ی بشری به آن است به طوری که هنوز در برخی کشورهای جهان به ویژه اروپا و آمریکا گوشت خوک جزء غذاهای رسمی آن ها قرار دارد.

حال می خواهیم به حکمت حرام شمردن گوشت خوک بپردازیم:

برخی صاحب نظران در مورد حرمت گوشت خوک به برخی از حکمت*های قرآن اشاره کرده*اند که بعضی از آن ها را در این جا می آوریم و برای آگاهی بیشتر از این موضوع، منابعی را جهت مطالعه معرفی می کنیم: در مورد فلسفه ی حرمت گوشت خوک از دو جهت می توان سخن گفت:

الف. تأثیرات روحی و روانی گوشت خوک: خوک حتی نزد اروپائیان که از گوشت آن می خورند سمبل بی غیرتی و حیوانی کثیف است. خوک در امور جنسی فوق العاده بی تفاوت و لا ابالی است. تأثیر غذا در روحیات نیز از نظر علمی ثابت شده است و تاثیر این غذا در خصوص لاابالی گری در مسائل جنسی مشهود است.

یکی از نویسندگان می نویسد: خوک غیرت ناموسی ندارد و جفت خود را در معرض خوکهای نر دیگر قرار می دهد و حتی از این کار لذت هم می برد، که این صفات در گوشتش هم تاثیراتی دارد، از این جهت، اشخاصی که از آن تغذیه می کنند همان صفات و اخلاق رذیله را پیدا می کنند.

ب. ضررهای صحی و بیماریهایی که توسط خوک به انسان منتقل می شود:

-بیماری هایی هستند که یکی عوامل ابتلای به آن ها گوشت خوک ذکر شده است و استفاده از گوشت این حیوان در ایجاد آن ها موثر است:

۱ -اسهال خونی؛

۲ یرقان عفونی؛

# ترس از ریا

ترجمه: ابوعامر

صالحان عبادت خود را پوشیده می‌داشتند و از روی اخلاص برای خداوند و ترس از ریا، طاعاتِ خود را مخفیانه انجام می‌دادند.

زبیر ـ رضی الله عنه ـ می گوید: «هر کدام از شما که بتواند عملِ صالحِ مخفیانه داشته باشد، چنین کند.»

از میان سلف کسانی بودند که در مجلس ذکر نشسته و جلوی اشک خود را می گرفتند و اگر نمی توانستند بر گریهٔ خود غلبه کنند از مجلس بر می‌خواستند.

برخی از فقرای مدینه نمی‌دانستند غذایشان از کجا می‌آید، تا آنکه علی بن الحسین، زین العابدین ـ رحمه الله ـ در گذشت دیگر غذایی به در خانه‌شان نیامد، و هنگام غسل پیکر او اثر بند زنبیل را بر پشت او دیدند.

عبدالله بن مبارک ـ رحمه الله ـ در جهاد برای آنکه شناخته نشود چهرهٔ خود را می‌پوشاند.

عبدالرحمن بن مهدی ـ رحمه الله ـ شب را به نماز می‌ایستاد اما همین که احساس می کرد کسی می‌آید خود را به خواب می‌زد!

ربیع بن خیثم کارهای نیک را تا جایی که می توانست مخفیانه انجام می‌داد و هنگامی که قرآن می‌خواند اگر کسی به نزد او می‌آمد آن را با لباس خود می‌پوشاند.

پیشینیان این را می‌پسندیدند که انسان حتما بخشی از کارهای نیکش را مخفیانه انجام دهد و حتی همسرش نیز از آن بی‌اطلاع باشد.

شافعی می گوید: «دوست داشتم مردم از من یاد بگیرند اما هیچ بخشی از آن علم به من نسبت داده نشود». می گویند: از خشیت خداوند اشک او جاری شد و مردم او را در این حال دیدند. امام شافعی رح گفت: «سرمای سختی خورده‌ام»!

اما برخی از طاعات را نمی‌شود مخفی کرد، یا به سبب طبیعت آن، مانند اذان و نماز جماعت، و یا به سبب منفعتی که در پی علنی انجام دادنِ آن به دست می‌آید، مانند صدقه دادن برای تشویق دیگران به انجامِ این کار، و در هر صورت: «کارها به نیت‌ها بستگی دارد.

۳ - انتامیب هیستولتیک، که انسان را به اسهال آمیبی مبتلا می نماید؛

۴ - بیماری شبه باد سرخ که در انسان به صورت لکه های سرخ و دردناک توأم با سوزش شدید روی دست ها ظاهر می شود؛

۵ - تصلب شرایین. دردهای مفصلی و مسمومیت ها و علت آن میزان زیاد چربی و اسید اوریک موجود در گوشت خوک می باشدخوک از خوردن چیزهای پلید حتی مدفوع خودش باکی ندارد لذا معده اش لانه ی اقسام میکروب هاست که به گوشت و خون و شیرش هم سرایت میکند.

در کشورهای اسلامی در اثر مبارزه ی جدی اسلام، گوشت این حیوان مصرف نمی شود و لذا پیامدهای آن نیز کمتر به چشم می آید، اما در کشورهای غربی (اروپاو آمریکا) که این ممنوعیت اعمال نمی شود بسیاری از مردم از مصرف آن دوری می گزینند؛ حتی در برخی از این کشورها مثل قسمت هایی از روسیه در اثر شیوع بیماری های مربوط به گوشت خوک (کرم ترکین یا ترشین) مصرف گوشت آن را ممنوع اعلام کرده اند.

ناگفته نماند بیماری کرم کدوی خوک به صورت گسترده در جهان منتشر شده و در کشورهای اسلامی که گوشت خوک مصرف نمی کنند به ندرت دیده می شود.

نتیجه:

حکمت تحریم گوشت خوک را می توان پیش گیری از زیان های مترتب بر گوشت خوک شمرد؛ ولی این ضررهای بهداشتی و اخلاقی فقط می تواند به عنوان فلسفه و حکمت این حکم مطرح شود. نه علت انحصاری آن. و هنوز باید منتظر کشفیات جدید علمی در این باره باشیم. پس حرام ها و حلال های خداوند دارای مصلحت ها و حکمت هایی است که با پیشرفت علوم بدان ها بیشتر پی می بریم. به عبارت دیگر قرآن به برخی نکات اشاره می کند که علوم پزشکی و عقل آدمیان در صدرِ اسلام، آن ها را کشف نکرده بود و نمونه ی آن، همین تحریمِ گوشتِ خوک است که به برخی از مضرات و حکمت های آن اشاره شد.

(سایت حقانیه)

عبید منیر

# هغه هیوادونه چې امریکا ورسره په مذاکراتو کې درغلي کړي !!

د تاریخ په اوږدو کې دنړۍ ګڼ هیوادونه ددې لپاره چې له اقتصادي او سیاسي محاصرو او بحرانونو ووزي اړشوي چې له امریکا سره دخبرو میزته کیني ، ځیني هیوادونو اوس هم په هماغه پخواني سبک او سیاق اوپه بل عبارت په کمزوري حالت کې قرار لري ، خوداسې هیوادونه هم شته چې هم یې له امریکایانو سره خبري او دیپلوماسي چلولي ، ولې دریځ او موقف یې اوس هم غاوره او امریکایي دیته مجبوره کړي چې ورسره متقابله او موزونه راشه درشه ولري.

## لیبیا؛ زیان او شکست ولید :

په کال ۲۰۰۱ کې له لیبیا سره د امریکا ړومبنی مخامخ خبري دلیبیا داتومي پلان په باب پیل شوي ، په ۲۰۰۳ کال دعراق جنګ دغو خبرو ته نوي شکل ورکړ په دې معنا چې امریکا له لیبیا سره په خبرو کې له توندی اوبدماشی څخه کاروا خیست.

قذافي په دغه وخت کې دامریکا ټولې مطالبې او غوښتنې ومنلې ، دامریکایانو مهمه غوښتنه داوه چې لیبیا باید خپلې اتومي تجهیزات منهدم او یا اجازه ورکړي چې بل کوم هیواد ته دله منځه وړلو لپاره یوووړل شي ، همدارنګه به په اینده کې هم لیبیا له اتومي پلان څخه که تحقیقي اویا تولیدي وي تیریږي.



قذافي ددې لپاره چې امریکایانو ته په خبرو کې زیاته علاقه وښیي نو داتومي وسلو دجوړولو هغه عمومي معلومات یې هم په اختیار ورکړل چې څنګه یې تجهیزات ترلاسه اوکومو هیوادونو ورسره مرسته کړي.

په مقابل کې امریکایانو هم یو نمایشي ګام پورته کړ او خپل حسن نیت یې له لیبیا څخه دځو اقتصادي بندیزونو په پورته کولو سره ښکاره کړ

له لیبیا سره دخبرو او تعهداتو په وخت کې انګلستان هم ملګری او یوځای وو ، دواړو هیوادونو له قذافي سره داسې یو تړون لاسلیک کړی وو چې که لیبیا دکوم بهرني تجاوز هدف ګرځیده امریکا او انګلیستان به میدان ته رادانګي او په ګډه به یې مقابله کوي.

ولې امریکایانو نه داچې له لیبیا څخه اقتصادي بندیزونه لیري نکړل ، پنځه کال له شوي ژمني نه وو پوره شوي چې امریکا او انګلیستان دناټو دهیوادونو په همکاري په دې پلمه چې له قذافي څخه خلک ناراضه اوبشري حقوق یې تر پښو لاندې کړي په لیبیا هوایي یرغل پیل، قذافي او رژیم یې نسکور او داخبره ثابته شوه چې امریکا او انګلیستان له لیبیا سره په ټولو تعهداتو کې دروغژن او دوه مخي وو.

## عراق .

کله چې امریکایانو په کال ۱۹۹۱ کې دکویټ هیواد دازادی په نوم او په سیمه کې دخپلو ملي منافعو دخوندیتوب په نیت په عراق برید وکړ او عراقي پوځیان یې له کویټ څخه وویستل ، نه داچې عراق سره یې شخړه ختمه نکړه بلکې دعراق کیماوي وسلولرل یې لویه پلمه وګرځوله ، په ۱۹۹۸ کال کې عراق تیارشو چې په اصطلاح داتومي وسلو نړیوال اژانس پلاوي ته اجازه ورکړي ترڅو له عراق څخه لیدنه وکړي او دکمیاوي وسلو تفتیش ترسره کړي ، صدام حسین دومره تنزل هم وکړ چې په عراق کې دولسمشری په ماڼی سربیره دنوموړي هیواد هغه ۸ مهمې سیمي او تاسیسات چې اژانس پکې دوسلو دموجودیت شک درلود دکتلو اجازه ورکړه او هم یې له امریکایانو سره په دې ګام هم موافقه وکړه چې په حکومت او اساسي قانون کې به دخلکو دغوښتني برابر تغیر او اصلاحات رامنځته کوي.

خو له دغو ټولو همکاریو او تمایلاتو سره سره ، دوسلو مفتشینو اعلان وکړ چې عراق له دوی سره مناسبه مرسته ونکړه اودوی شک لري چې نوموړی هیواد دکمیاوي وسلو سلاکوټونه او اودتولیداتو کارخاني لري. په ۲۰۰۲ کال کې صدام بیاهم نړیوال اژانس ته اجازه ورکړه چې له عراق څخه پلټنه ترسره کړي اوهم یې د ملګرو ملتونوله لوري له صادري شوي قطعنامه سره چې عراق به خپلې ټولې شکمني سیمي پلټونکو ته وروښیي او هم به کمیاوي وسلي له منځه وړي اماده ګي وښوده.

چون امریکا په سیمه کې نور فوځي شتون غوښته او اسرایلو ته یې مذید مصؤنیت ورکاوه ، دعراق ټول تمایلات او چمتوالی یې په ځمکه وواهه په ۲۰۰۳ کې پوځي یرغل شروع کړ اودصدام حسین درژیم په سقوط سربیره په ځوکلنه جګړه کې یومیلون عراقیانو ته مرګ ژوبله واړوله او عراق یې په کنډواله بدل کړ !

## شمالي کوریا :

نوموړي هیواد هم دخپل اتومي پلان دتعلیق په سرله امریکایانو په ۲۰۰۳ کال کې دخبرو میز ته کیناست ، ولې نتیجه یې نه درلوده ، په ۲۰۰۴ کال بیادغه خبري رواني شوي ، خوداځل امریکایانو دوسلو دتعلیق په ځای دوسلو دله منځه وړلو برنامه وړاندې کړه.

دهمدې کال په اوږدو کې بیا خبري له سره پیل شوي ، شمالي کوریا داځل لوی انعطاف وښود او امادګي یې وښوده چې خپل اتومي پلان به دروي ، خوپه دې شرط چې امریکابه کوریاته مالي مرسته ورکوي اودبرق دتولید لپاره به په کوریا کې لوی راکتورونه نصبوي ، امریکایانو او کوریایانو دغو خبرو ته د(عمل په مقابل کې عمل ) نوم ورکړ او ددواړو لوریو څخه ومنل شول.

امریکا له شمالي کوریا سره هم عهد شکني پیل کړه ، نه داچې په خپلو ژمنو ونه دریده بلکې په ۲۰۰۵ کال کې یې په کوریانوي اقتصادي بندیزونه هم ولګول ، په ۲۰۰۷ کې شمالي کوریا دړومبي اتومي توغندي ازموینه وکړه ،

امریکانور هم اقتصادي بندیزونه پراخ کړل ، خو شمالي کوریا ددې لپاره چې له اقتصادي کلابندیو یوڅه راووزي اعلان یې وکړ چې په دې شرط اتومي پلان دروي چې په مقابل کې له امریکا څخه پراخ مالي اوفني کمک ترلاسه کړي.

شمالي کوریا په دغه موده کې خپل ۸۰ فیصده اتومي فعالیتونه ودرول ، خودامریکاله لوري ورسره هیڅ مالي او فني مرسته ترسره نشوه ، همدالامل وو چې کوریاپه ۲۰۰۹ کال په یوجانبه ډول دخبرو له ۶ پړاو څخه ووتله اوهم یې دوسلو دنړیوال اژانس پلټونکي له هیواده وویستل.

دکتونکي په اند تردې دمه له شمالي کوریاسره هم دامریکا دیپلوماسي شکست خوړولی ، خو مهمه خبره داد چې شمالي کوریادخبرو په دغه اوږده موده کې دخپلې قوي دیپلوماسي له مخې فقط لاسته راوړني لرلي او له لوی شکست څخه یې ځان ژغورلی ، په دې معنا چې هم یې اتومي بریا ترګوتو کړي او هم امریکا دیته اړکړی چې شرایط یې ومني او په مساوي ډول دخبرو میزته ورسره کیني.

## خو ؛ ویتنام بیا :

ویتنام که څه هم په کال ۱۹۲۴ کې په دو برخو وویشل شو ( شمالي او جنوبي ) خو له امریکاسره دویتنامیانو جګړه نوره هم تونده شوه، چې بالاخره یې امریکاته داسې تاریخي شکست ورکړ چې که امریکاپه بل هرهیوادکې دخلکو له مزاحمت او مقاومت سره مخ شي ، نو دویتنام له جنګ سره یې مقایسه کوي او وایي چې دابه دامریکایانولپاره دوهم ویتنام ګرځي.

امریکایانو په دې نوم چې دجنوبي ویتنام دخلکو مرسته کوي دشمالي ویتنام دخلکو دزور او زیاتي په مقابل کې هلته لشکرکشي او یرغل وروور.

دشمالي ویتنام او امریکایانو ترمنځ خبري په داسې حال کې پیل شوي چې دواړو لوریو دیواو مقابل کې سخته جګړه پیل کړي وه، امریکایانو په دغه جنګ کې په میلونو تنه ویتنامیان په ډیر قساوت وژلي وو او وکیمیاوي وسلې یې پرې کارولي وي ، خو په هغه سربیره دواړه لوري بیاهم دخبرو او مذاکراتو له میز څخه په شانشول.

تاریخ وښوده چې ویتنامیانو دسیاست له میدان سره یوځای دمقاومت ډګر هم ګرم ساتلی وو ، چې په نتیجه کې شمالي ویتنام په دې بریالی چې په ۱۹۵۷ کال کې دجنوبي ویتنام پلازمینه ( سایګون ) له امریکایانو ولکه اوبیاپه ټول ویتنام سلطه ټینګه کړي ، له هغه ورسته دجنوبي او شمالي ویتنامیانو ترمنځ خبري او مذاکرات وشول او په دې خبره کامیاب شول چې امریکایان په څه ډول دویتنام له خاوری وباسي.

کتونکي په دې اند دي چې که چیري ددواړو ویتنامیانو توافق او نتیجه خیزي خبري او هم دامریکایانو په مقابل کې دندان شکنه جګړه اومقاومت نه واي ، نو اوس به ویتنام دامریکا یوه مستعمره بلل کیده اویابه یې هم یو تل پاتی ګوډاګی هیواد شمیرل کیده.

دیادوني وړده چې دویتنام جنګ له ۱۹۵۵ څخه تر ۱۹۷۵ پوري روان وو شمالي ویتنام ددې ترڅنګ چې دجنوبي ویتنام له جدایي سره موافق نه وو او دیوه متحد ویتنام لټه یې کوله په عین حال کې یې لوی هدف داوه چې څنګه امریکایی لښکري وباسي، چې بالاخره شمالي ویتنام همدغه دواړو هدفونو ته ورسید هم یې امریکایان وویستل اوهم یې دجګړې په حالت کې دواړه ویتنامونه متحد او نوم یې ورته ٠ سوسیالیستي ) ویتنام ورکړ چې تراوسه په همدې نامه وجود لري

# مسلمانان جهان ...

## آرزو به سوی مکه مکرمه

تحلیل جمعیت شناختی از آمار جمعیتی زائران که از نقاط مختلف جهان به سوی مکه می روند حاکی از افزایش تعداد مسلمانان در جهان است و اینکه اسلام روز به روز در حال پیشرفت در کشورهای مختلف است و همین امر باعث می شود که سالیانه شوق مسلمانان برای زیارت اماکن مقدسه به ویژه مکه مکرمه بیشتر شود.

مسلمانان در کشورهای مختلف به خاطر شوق به مکه و زیارت خانه خدا هزینه های خود را برآورد می کنند و منتظر می نشینند تا با چشمهای زمینی خود به خانه کعبه بنگرند و جان و دل وجود خداوند را در عرش زمینی احساس کنند، اما با این وجود برخی در مضیغه مالی قرار دارند و به انتظار هستند تا روزی بتوانند وارد سرزمین وحی شوند و این امر تنها مختص یک کشور نیستند، بلکه مسلمانان جهان را در کشورهای مختلف شامل می شود.

مازوهونجیوا، زائر چینی (66 ساله)، می گوید: یکی از بزرگترین آرزوهای من در زندگی این بود که به سفر معنوی حج بروم، ولی به دلایل مادی این امر امکان پذیر نبود تا اینکه به همراه 13 هزار و 800 زائر چینی توانستم برای حج امسال ثبت نام کنم و به خانه خدا مشرف شوم.

وی درباره انتظار کشیدن خود برای تشرف به حج و شوقش به این سفر می گوید: در چین مردم سالیان سال سرمایه های خود را جمع آوری می کنند تا در پیری از مالی که جمع کرده اند بتوانند به حج بروند و هم اکنون که این سفر نصیبم شده است نمی توانم تا شوق خود به این سفر و برآورده شدن آرزویم را توصیف کنم.

این درحالی است که آمار زائران چینی برای سفر به حج سال به سال افزایش می یابد، به طوری که «لی یوشان» مسئول دفتر امور دینی زائران در منطقه خودمختار «نینجشیا» می گوید: امسال تعداد زائران در این منطقه به دو هزار و 656 نفر می رسد و تعداد زائران از شمال غرب چین به یک هزار و 197 نفر می رسد که این نشان دهنده افزایش آمار زائران است و بقیه مناطقی که 20 میلیون مسلمان دارد بر اساس سرشماری ها بیشتر در استانهای تشینگهای، قانسو، منطقه نینجشیا و شینجیانگ متمرکز هستند.

علاوه بر چین، مسلمانان برزیل نیز با شوق و نشاط برای ادای فریضه حج وارد سرزمین وحی می شوند. اتحادیه موسسه های اسلامی نیز اعلام کرد: امسال همانند گذشته زائران برزیلی و به ویژه تازه مسلمانان را به حج اعزام کردیم.

شیخ خالد تقی الدین، مدیر امور اسلامی اتحادیه موسسه های اسلامی گفت: حجاج از مناطق مختلف برزیل وارد سرزمین وحی شده اند و یک سوم از زائران برزیلی که اخیرا به دین اسلام روی آورده اند، نیز به سفر حج اعزام شده اند.

از سـویی دیگـر ، بـا وجـود آنکـه مسـلمانان اوگانـدایی از مسلمانانی هستند که شوق زیادی برای سفر معنوی حج دارند، به دلیل وجود بحرانهای اقتصادی در کشورشان بسیاری از آنان با تعویق وارد مکه مکرمه و مدینه منوره شده اند.

همچنین قرار بود امسال دست کم یک هزار و 500 نفر از اوگانـدا بـه مکـه مکرمـه اعـزام شـوند، ولـی بـه دلیـل وجـود مشکلات، تنها 866 نفر به سفر معنوی حج اعزام شدند. احمد لوبیجو، مدیر آژانس و صدور ویزای مسلمانان گفت: بسیاری از مسلمانان به دلی عدم تمکن مالی امسال نتوانستند تا به حج بروند.

منصور موتیکانجا، مقیم شهر نماسوبا در این باره گفت: امسال به دلیل مشکلات مالی نتوانستم به حج بروم، زیرا تنها نیمی از مبلغ مورد نظر را داشتم ولی امیدوارم که بتوانم به آرزوی خود در سال آینده برسم.

اما در این میان، دولت اندونزی موفق شد تا به زائران خود بهترین خدمات را از نظر وسایل حمل و نقل و غذایی ارائه دهد، به طوری که حاج النووی (62 ساله) از شهر اوتارا واقع در جنوب جاکارتـا در ایـن بـاره مـی گویـد: از روز نخست ورود بـه مکـه مکرمه، غذاهای رایگان در میان حجاج توزیع شده است و از جهت وسایل نقلیه نیز تمامی امکانات فراهم بوده است و از این بابت از دولت تشکر می کنیم. اما خانم مردیا (60 ساله) از شهر سیلینکینج می گوید: مدت ده سال طول کشید تا هزینـه های حج را جمع آوری کنم و بیش از ده سال است که شوق رفتن به حج را داشتم. مـارا اولـوان سـیریگار، عضـو هماهنـگ کننـده جمعیت حجاج مـی گویـد: در میان زائران اندونزیایی عاطفه قوی ای برای زیارت از اماکن مقدسه وجود دارد چه یک بار به سفر حج اعزام شده باشند یا بیشتر.

با این وجود این مسئله ای نیست که تنها مختص مسلمانان در اندونزی باشد، بلکه مسلمانان جهت به دلیل ارتباط معنوی قوی ای که دارند برای رفتن بـه زیارت امـاکن مقدسـه بـه ویـژه سفر معنوی حج لحظه شماری می کنند. مکه مکرمـه بـه عنـوان قطب جهان اسلام بـه شـمار مـی رود و سالیانه پـذیرای بـیش از یک میلیون مسلمان است کـه بـا هـزار امیـد و آرزو بـه سـرزمین وحی می روند.

## یک کلیسای قدیمی در هامبورگ به مسجد تبدیل می شود

**با وجود مخالفت های گروه های ضد اسلامی یکی از کلیساهای قدیمی در هامبورگ آلمان به مسجد تبدیل می شود.**

**به گزارش اخبار جهان اسلام به نقل از خبرگزاریها ،طرح مسلمانان برای تبدیل یکی از کلیساهای قدیمی «لوتران» به مسجد در شهر هامبورگ موجب جنجال آفرینی در سراسر آلمان شده است.**

**گسترش تدریجی مساجد و جایگزین شدن آنها به جای کلیساهای قدیمی از «برلین» گرفته تا «دورتموند» نشان دهنده رشد روزافزون اسلام در آلمان به عنوان دومین دین پس از مسیحیت است.**

**در تازه ترین مورد ،کلیسای «کاپرناوم» واقع در یکی از مناطق مرکزی هامبورگ به نام Horn به مسجدی برای عبادت مسلمانان تبدیل می شود.**

**این کلیسا در سال 2002 میلادی به دلایل مالی تعطیل شد.**

**ساختمان این کلیسا و زمین های اطراف آن در سال 2012 به مرکز اسلامی النور که دارای حدودا 600 عضو است فروخته شد و اکنون این مرکز پروژه ساخت مسجد در این مکان را آغاز کرده است.**

**به گفته دست اندرکاران این پروژه ،هزینه ساخت مسجد یک میلیون و هزار میلیون دلار است .**

**به گفته مسئولان، این مسجد روز سوم اکتبر سال جاری افتتاح شود.**

**سوم اکتبر روز اتحاد آلمان است که البته مسلمانان این روز را روز «افتتاح مساجد» نامگذاری کرده اند.**

**اما تبدیل کلیسای شهر بزرگ هامبورگ به مسجد با مخالفت هایی از سوی برخی گروه های ضد اسلامی مواجه شده است.**

**مارکوس وینبرگ ،رئیس حزب دموکراتیک مسیحی در هامبورگ در این باره گفته است: من مخالف این حرکت هستم حتی اگر مسلمانان به طور قانونی مجوز تبدیل کلیسا به مسجد را داشته باشند.**

**او از مقامات این شهر درخواست کرده تا با مسئولان مرکز النور دیدار کرده و آنها را از این اقدام منصرف کنند.**

**اما رهبران اسلامی به مسلمانان قول داده اند تا این پروژه را به اتمام برسانند و هیچ هراسی از تبلیغات ضد اسلامی در این زمینه نداشته باشند.**

## مرکه:

زابل ته دلیږل شوي امارتي پلاوي مشر ښاغلی حکمت الله:

# په هر رازستونزوکي د زابل د اولس یوازینی مرجع د اسلامي امارت فعالي اداري دي

درنو لوستونکو ! د افغانستان د اسلامي امارت د مرکزي نظامي کمېسیون له لوري پدې وروستیو کي د هیواد ښېلابېلو ولایاتو ته دمجاهدینو د مراقبت او هر اړخیز وضعیت معلومولو په موخه جګپوړي هیئتونه لیږل شویوه دځپلو مرکو په سلسله کې مو دادی دا ځل د زابل ولایت ته له تللي پلاوي سره مرکه درته چمتوکړې هیله ده د پاملرني وړ مو وګرځي.

**پوښتنه** : محترمه که د مرکې له دود سره سم لومړی خپل ځان را معرفي کړی او ووایاست چي زابل ولایت ته د تللي پلاوي غړي څوک وه او مشري یې د چا په غاړه وه ؟

**ځواب** : بسم الله الرحمن الرحيم- الحمد لله وحده والصلوة والسلام علي من لانبي بعده و بعد ، زابل ولایت ته تللی پلاوی عبارت وو له: مولوي فضل الرحمن صاحب، مولوي محبوب صاحب او ما حاجي حکمت الله څخه چي د پلاوي مشري هم زما په غاړه وه.

**پوښتنه** : مننه ، حاجي صاحب که مهرباني وکړی د مرکې په پیل کي د زابل ولایت پرعمومي جهادي وضعیت رڼا واچوئ.

**ځواب** : زابل ولایت الحمدلله د هغو ولایاتو په سر کي راځي چي ډېري سیمي یې فتحه سوي، د اسلامي امارت واکمني پکښي ټینګه سوې او په محدودو سیمو کي یې ښهرني اشغالګر او ګوډاګي عسکر پاتي دي ، د زابل ولایت د ټولو ولسوالیو مواصلاتي لاري د مجاهدینو په کنټرول کي دی او کله چي موږ دغه ولایت له یوې ولسوالۍ څخه بلي ولسوالۍ ته سفر کاوه ښېله دې چي د لاري په اوږدو کي د دښمن له مخامخ کېدو څخه کوم خطر محسوس کړو په پوره ښېغمۍ سره مو سفر کاوه پدې ډول مو له ټولو ولسوالیو څخه لیدنه وکړه، د زابل ولایت د مجاهدینو هغه خدمت چي د نورو ولایتونو مجاهدینو ته یې کړی هغه دځپل فعال مخابراتي سیستم په مټ د ټولو لارو څارل او له یوه ولایت څخه بل ولایت ته د مجاهدینو د تګ او راتګ پُرامنه طریقه برابرول دي، مثلاً که مجاهدین له غزني څخه کندهارته او یا له کندهار څخه دغزني له لاري نورو ولایاتو ته تلل غواړي نو د زابل مجاهدین په ټولو حساسو نقطو کي د مخابره لرونکو پیره دارانو په مرسته د هلیکوپترواو ددښمن د نورو حرکاتو څار کوي او تلونکو مجاهدینو ته یې په اړه معلومات ورکوي ، په زابل ولایت کي ځیني داسي ولسوالۍ سته چي په مکمل ډول د اسلامي امارت تر واکمنۍ لاندي دي او ډېري یې داسي دي چي یوازي یې د ولسوالۍ تعمیر د دښمن په ولکه دی اود ولسوالۍ پاته سیمي ټولي د مجاهدینو په ولکه کي دي.



د زابل ولایت په ټولو ولسوالیو کي د اسلامي امارت مکمل نظامي او ملکي تشکیلات فعال دي او هر مسئول په پوره مسئولیت سره خپله دنده ترسره کوي ، د زابل د اولس یوازنی مرجع په سیمه کي همدا د اسلامي امارت فعالي اداري دي او په ځانګړي توګه د قضایي مسائلو اړوند د اولس ټول مشکلات د اسلامي امارت د قضاتو له لوري حل او فصل کیږي.

**پوښتنه** : محترم حاجي صاحب که مهرباني وکړئ د زابل ولایت د هغو ولسوالیو چي تاسو یې ټولي چاري له نژدې کتلي لنډ معلومات له لوستونکو سره شریک کړئ.

**ځواب** : موږ د زابل ولایت د مرکز کلات د اړوندو سیمو او یوولسو ولسوالیو ټول حالات له نژدې وکتل او د اسلامي امارت له سیمه ایزو مسئولینو سره مو یې په اړه مفصلي خبري وکړي ، دلته زه دهري ولسوالۍ په اړه خلاصه معلومات له تاسو سره شریکوم:

مرکز کلات: د زابل ولایت د مرکز کلات ښار په نژدې سیمو کي مجاهدین فعال حضور لري او په کلات ښار کی هم چریکي مجاهدین وخت په وخت مؤثري حملې کوي، د کلات ښار او اړوندو سیمو اوسېدونکي د مزدور رژیم د محاکمو پر ځای خپلي حقوقي دعوې او نوري شخړي د اسلامي امارت د مؤظفو کمېسیونونو له لاري حل کوي او خلک د اسلامي امارت په فیصله تر هرچا خوښ او راضي دي.

خاک افغان: خاک افغان ولسوالي په بشپړ ډول د اسلامي امارت د مجاهدینو له لوري فتحه شویده ، ددغي ولسوالۍ ټولي چاري په ډېر منظم ډول د اسلامي امارت د مسئولینو له لوري اداره کېږي او اولسي خلک د امن او خوښۍ په فضا کي ژوند کوي.

دایچوپان: د دایچوپان ولسوالۍ ټولي سیمي د مجاهدینو په ولکه کي دي، دښمن د ولسوالۍ په کلا کي پداسي حال ګذاره کوي چي د مجاهدینو تر محاصرې لاندي دی، مجاهدینو د ولسوالۍ ودانۍ ته په پنځه سوه مترۍ کي نژدې امنیتي کمربند اچولي او د دښمن هر حرکت څاري.

ارغنداب: په ارغنداب ولسوالۍ کي هم ډېري سیمي د مجاهدینو په ولکه کي دي خو دښمن هم د ولسوالۍ د ودانۍ په شمول په ځینو سیمو کي پوستې لري چي وخت په وخت د مجاهدینو تر حملو لاندي راځي، په ارغنداب کي دښمن د مجاهدینو په مقابل کي دفاعي حالت غوره کړی او امید سته چي دښمن به په دغه سیمه کي ډېرمقاومت ونسي کړای.

مېزانه: د مېزاني ولسوالۍ مجاهدین هم الحمدلله د دښمن په مقابل کي په لوړ مورال جنګېدل ، زموږ د هیئتی څخه څه موده مخکي یې دښمن دیوې سختي مقابلې په ترڅ کي دېته مجبوره کړیوو چي شپږ پوستي په مکمل ډول تسلیم شي، د زابل ولایت له مرکز کلات څخه مېزاني ته پر تللې لار دښمن ګڼي امنیتي پوستې ځای پرځای کړیدي چي دمجاهدینو له پرلپسې حملو څخه په تنګ راغلي دي.

شاه جوي: څرنګه چي شاه جوي ولسوالي د زابل ولایت یو له ډېرو مهمو او ستراتیژیکو ولسوالیو څخه ده نو دښمن هم ددغي ولسوالۍ د ساتلو زیات کوښښ کوي، دلته مجاهدین الحمدلله ډېرفعال دي ، څرنګه چي ددغي ولسوالۍ مرکز او ډېري سیمي د کابل - کندهار پر لویه لار موقعیت لري نو مجاهدین هم پردښمن ددغي لویي لاري په اوږدو کي ډول ډول تکتیکي بریدونه کوي او دښمن ته ددوي پر اکمالاتي کاروانونو او یا دنظامي موټرونو د تېرېدو په ترڅ کي سخت مالي او ځاني تاوانونه اړوي، ددغي ولسوالۍ په کلیوالي سیمو کي د اربکیانو له موجودیت څخه یو لړ ستونزي راپیدا سوي چي پر اولسي خلکو ظلمونه ، غلاوي او نور فسادونه دی ، کله چي دلته مجاهدین پر اربکیانو کومه حمله وکړي نو اربکیان یې انتقام له عام اولس نه اخلي او وایي چي دوي ستاسو په مرسته پر موږ حملې کوي، پدې ورستیو کي

مجاهدینو اربکیانو او نورو عسکروته سخت ګذارونه ورکړي چي امید دی دښمن به په نژدې راتلونکي کي ددغي ولسوالۍ له ډېرو سیمو وشړل سي.

شینکۍ: شینکۍ ولسوالي هم تر ډېره د مجاهدینو په ولکه کي ده، دلته د امریکایانو یوه لویه قرارګاه موجوده ده چي مجاهدینو دیوه کیلومتر په فاصله ددوي پرضد فعالیت کاوه، امریکایانو ته یې ماینونه پټول او د لویو اسلحو ټکان یې هم پرکول، د سیمي مجاهدینو ویل چي امریکایان نور د مجاهدینو له پرلپسې حملو څخه په تنګ سوي او داسي نښې نښاني څرګندي سويدي چي امریکایان نور غواړي له دغي قرارګاه څخه وتښتي.




دشمولزو ولسوالي: ددغي ولسوالۍ پراخي سیمي د مجاهدینو تر کنټرول لاندي دي او پر دښمن یې تقریباً ټولي اکمالاتي لاري تړلي دي، د شینکۍ او شمولزو ولسوالیو ترمنځ چي دوي کومه اکمالاتي لاره لري هره ورځ دمجاهدینو د پراخو بریدونو شاهده وي.

نوبهار: د نوبهار ولسوالۍ ډېري سیمي د مجاهدینو په ولکه کي دي او په ځینو سیمو کي اربکیان او نور عسکر فعال دي چي له اولسي خلکو سره سخت ظلمونه کوي، امریکایان هم ځیني وختونه د مجاهدینو او عام اولس پرکورونو وحشي چاپې وهي او بېګناه خلک ورسره بندیان کوي، موږ چي کله هلته موجود وو نو پر دغه سیمه دامریکایانو هلیکوپتر او نورو طیارو د د چاپې په موخه څرخونه خوړل او غوښتل یې چي کښته یې کړي خو د مجاهدینو له لوري دټکانو په کولو سره دوي ونه توانېدل چي چاپه ووهي او بېرته ناکامه ولاړل، اربکیان یې دومره ظالمان او غله وه چي ځیني وخت به یې دتلاښۍ په موخه دخلکو له کورونو واړه او کم قیمته شیان هم غلاکول، د هغه ځای اوسېدونکو راته وویل چي اربکیان له یوه کورڅخه د تلاښۍ پرمهال حتي پرتوګاښونه او واګي هم غلاکړې نوري غلاوي خو یې لا پرېږده.

اټغر: دغه ولسوالي هم د شمولزو په شان له اربکیانو خلاصه ده او د اسلامي امارت مجاهدین یې نژدې ټولي سیمي کنټرلوي، دښمن په خورا ضعیف حالت کي قرار لري او ډېر ژر به ان شاء الله د ولسوالۍ له تعمیر نه هم وشړل سي.

د سوري ولسوالي: په دغه ولسوالۍ کي هم د شینکۍ ولسوالۍ په شان دامریکایانو لویه قرارګاه موجوده ده خو مجاهدین یې الحمدلله په ډېره مېړانه خپل جهادي خدمت ته ادامه ورکوي، ددغي ولسوالي اکثره سیمي مجاهدین اداره کوي او کولای سي دولسوالۍ په ټولو سیمو کي خپل فعالیت ترسره کړي.

**پوښتنه**: کله چي تاسو د هیئتۍ په جریان کي له سیمو لیدنه ترسره کول؛ آیا یوازي مو له نظامي مجاهدینو سره لیده کاته کول او که مو له عام اولس سره لیدل؟

**جواب**: موږ د هري ولسوالۍ د کتني په ترڅ کي له مجاهدینو سربېره له اولسي وګړو، علماء کرامو او قومي مشرانو سره خبري کولې او له هغوی څخه مو د سیمي د

مجاهدینو د کړو وړو ، له خلکو سره د هغوي د وضعیت او د خلکو دخپلو مشکلاتو په اړه پوښتني کولې، د اولس مشران او علماء الحمدلله ټول د مجاهدینو له اعمالو خوشحاله وه او له مجاهدینو سره مرسته ، له هغوي سره محبت او د هغوي ساتنه یې خپل ایماني او وجداني وظیفه بلله، اولسي خلکو ته د هیئت له لوري وویل سول که چیري تاسو د اسلامي امارت له مجاهدینو څخه کوم شکایت لرئ په پوره اطمینان یې راته ووایاست چي موږ یې ان شاء الله د عملي کولو په نیت اورو، خلکو په ډېري خوښۍ سره مننه وکړه او ویې ویل چي موږ هیڅ ډول شکایت له مجاهدینو څخه نلرو.

**پوښتنه** : حاجي صاحب تاسو د زابل ولایت په ولسوالیو کي د اسلامي امارت د کومو ادارو فعالیت ولید او څنګه یې ارزوئ ؟

**جواب** : موږ د زابل ولایت په ټولو ولسوالیو کي د اسلامي امارت لخوا د ولسوالۍ د نظامي او ملکي ادارو له مسئولینو سره دهغوي د فعالیتونو په اړه خبري وکړې او په هره برخه کي مو یې خدمتونه ولیدل، په نظامي برخه کي الحمدلله ډېرعالي نظم موجود وو، د مجاهدینو تر منځ مطلق د محبت او اخوت فضا موجوده وه او موږ چي به د مجاهدینو هر اطاق ته ورغلو نو داسي شی مو به مو نه لیده چي له شریعته مخالف وي، د اسلامي امارت د ټولو فرامینو عملي کوونکي او د خپلو مشرانو اطاعت کوونکي وه ، په ملکي برخه کي هري ولسوالۍ د اولسي خدماتو ،ستونزو او شخړو دحل او فصل کولو لپاره خپل مسئول درلود چي اولس یې خوښ ساتلی وو، په ځینو ولسوالیو کي د اسلامي امارت لخوا ټاکل سوي قاضیان موجوده چي د خلکو حقوقي دعوې یې ورخلاصولې او په کومو ولسوالیو کي چي قاضیان موجود نه وه د سیمي د مسئولینو لخوا به ورته ځوتنه علماء ټاکل سویوه چي دحکم په شکل یې دخلکوستونزي ورهوارولې، د تعلیم او تربیې په برخه کي ځیني ولسوالیو ښه پرمختګ کړیوو ، د سیمي خلکو د خپلو بچیانو د تعلیم اوتربیې لپاره مدرسې جوړي کړیوې مګر په ډېرو سیمو کي د مدارسو د نه شتون له امله خلکو له مجاهدینو د مرستې هیله درلوده، په زابل ولایت کي د تعلیم او تربیې د مسئولینو لخوا روان خدمات کافي ندي او پکار دي چي پدې برخه کي دخپل مسلمان اولس هیلو او غوښتنو ته پروخت او مؤثر ځواب وویل سي، د جلب او جذب کمیسیون هڅي هم تر ډېره بریالۍ وې او د سیمو ډېرو خلکو پدې برخه خپله هڅه کوله ، موږ هم د اسلامي امارت د مشرتابه له اړخه ټولو اولسي مشرانو ته اطمینان ورکړ چي تاسو که کوم څوک د مزدور رژیم له لیکو را جلاکوی امارت مو پوره ننګه کوي او ستاسو خدمت ستایي.

**پوښتنه** : محترم حاجي صاحب که دمرکې په پاي کي مهرباني وکړئ د مجاهدینو او اولس په اړه راته ووایاست چي دوي د راتلونکي په اړه څه فکر کاوه ؟

**ځواب** : د زابل ولایت د مجاهدینو په اړه باید ووایم چي دوي راتلونکي ډېر هیله مند وه ، د مجاهدینو ورځ په ورځ زیاتېدونکی قوت او د پراخو سیمو فتحه کول هغه څه وه چي د مجاهدینو مورال یې ډېر قوي کړیوو ، ډېرو مجاهدینو زموږ سره په خبرو کي په ټینګ عزم سره ویل چي ان شاء الله د الله جل جلاله نصرت او د ګران هیواد ازادي ډېره رانژدې سوې او لیري نه ده چي الله جل جلاله به دا مغرور دښمن له خاورو سره خاوري کړي.

د زابل ولایت مسلمان او مجاهدپرور اولس پردې پوره یقین او باور درلود چي ان شاء الله ډېر ژر به د اسلامي امارت نېکمرغه واکمني یوځل بیا راځي او د الله جل جلاله دښمنان به ماته خوري، دوي خپل راتلونکی ډېر روښانه لیده او د اسلامي نظام په سیوري کي د امن اوسولې ژوند ته هیله مند وه.

والسلام

# دلوګر والي څنګه مایک وواڼه ؟





خلیل - عزیز

په دې خبره کې بحث او تبصره نکوم چې په جوماتو کې دیوداسې مهم چاروا کي وژل روا او جایز دي چې مخامخ د امریکایانو په قومنده دیوه ولایت دوالي په مهمه دنده ټاکل شوي وي او والي هم بیا داسې والي وي چې ترټولو خاص ماموریت خپل دا بولي چې څنګه په لوګر ولایت کې اربکیان راپیدا او له امریکایانو ورسته داخل د دغه مجاهد ولس ابرو او عزت د کرغېړنو اربکیانو په توسط پایمال او خاورې ایرې کړي !!؟

که څه هم د امنیت ملي ډرامه چیانو دغه پېښه په طالبانو پورې وتړله او دهغوی عمل یې وباله ؛ ولې تراوسه د طالبانو نه کوم ټیټ رتبه او نه هم لوړپوړي چاروا کي په رسمي ډول د نوموړي پېښې مسؤلیت په غاړه اخیستی ، چې دا هم په خپل ځای کې یوه مهمه پوښتنه ده چې که طالبانو دا کار نه وي کړی نو بیا د دې خبرې امکان هم لیرې نه دی چې ارسلا جمال د دې د کوم داخلي انتقام او سیالی ښکار ګرځیدلی وي ؟

ولې د امنیت ملي ډرامه چیانو دې خبرې ته سخت زور ورکړ چې طالبانو د دوی والي په جوماتو کې او بیا د اختر په

دامنیت ملي غدارانو په دې هم بسنه ونکړه ، د پېښې په سبایې له کابل څخه قرانکریمونه راوړل له پلیدو بوټونو سره جوماتو ته ننوتل او العیاذبالله قران شریفونه یې پاڼه پاڼه او د جومات په صحن کې تیت وغورځول ، ورسته یې خپله همنوا میډیا راوغوښتله او ورته یې وروښوول چې دلوګر والي ارسلا جمال ته په مایکروفون کې نه ، بلکې په قران کریم کې منفجره مواد اېښودل شوي و .

ورځ ووژاه ) او د جوماتو تقدس ته یې کوم پام ونکړ.

یو کس چې خپله یې دغه صحنه په سترګو لیدلې وه ، داسې حکایت کاوه : دلوګر د مرکزي جومات د خطیب له خبرو ورسته ارسلا جمال ته بلنه ورکړل شوه ، هغه چې اعوذبالله او بسم الله خلاصه کړه نو (دلوګر معززو خلکو ) تشریفاتي ټکي یې نه وو پوره کړي چې له مایک څخه د جمال د خولې په لور انفجار وشو ، هغه وغورځید او یوه توره لوخړه جوړه شوه او د جومات شاوخوا شیشې راتویې شوې ، په هماغه شیشو یو څو تنه سرسري زخمیان شول ، دغه لمونځ ګوزار ویل چې نه یې قران کریم هلته لیدلی او نه یې کومه پاڼه ، بلکې مایک په والي ورخیژ وهل ، هغه زیاتوي چې قرانکریمونه خو په دیوالي الماریو کې ایښې وو دا څنګه ممکنه وه چې له الماری څخه دې قرآن کریمونو په والي راټوپ کړي او والي دې له ختې څخه راونیسي !!؟

ما په سرکې وویل چې علمي بحث ته ځان نه وردننه کوم او نه ډېره دیني پوهه لرم ، خوترکومه ځایه چې ما ارسلا جمال مطالعه کړی وو او دهغه له پلانونو خبروم ، عواقب یې دلوګر د مسلمان ولس لپاره سخت خطرناک وو ؛ ځکه دهغه ځانګړی دام داوه چې څنګه په هره سیمه کې اربکیان راوټوکوي.

څلور میاشتې وړاندې ارسلا جمال دلوګر قومي مشران دولایت مقام ته دعوت کړي وو او له هغوی یې په کلکه غوښتنه کړې وه چې یا تاسې په خپلو سیمو کې اربکیان جوړ کړئ او یا دوی په هرکلي کې چې څومره یې لازمه

بلله او په کومه نقطه کې نقشه راغله داردو پوستې جوړوي اوپه عین حال کې داردو سربازانو ! چې څه ډول چلند اوبرخورد درسره کاوه حق د شکایت به نلري !!؟

دلوګر مجاهد ولس په یوه غږ دارسلا له شوم پلان سره مخالفت په ډاګه کړ او ورته یې وویل چې اربکیان منل دوی ته د مرګ معنا لري ، که هرڅه پښېږي زغمي به یې او خدای ته به صبر کوي خو اربکی او ګلم جم دوی ته دیوه خره دوه غوږونه دي ، سپین ږیرو والي ته داهم ویلي وو چې په کومو سیمو کې تاسې اربکیان جوړ کړي هلته له چوراوچپاول ، بد امنیو او اخلاقي فساد نه پرته خلکو بل څه لیدلي او مشاهده کړي ، چې اوس دغه کرغیړنه اوپرسوده نسخه پرمونږ هم تپل اوعملي کول غواړي ؟

هماغه وو چې ارسلا خپله کینه او قساوت دلوګر له خلکو سره ترسره کړ ، له کابل څخه یې داردو دهزاره ګانو او شاړوناولي لنډغرکنډکونه لوګر ته راوغوښتل کورپه کوریې دتصفیوي عملیاتو په نوم هرډول وحشت اوبربریت سرته ورساوه ،له هغه چې سترې شول اوس یې بیا په هرکلي اوبانډه کې پوستې واچولي اوحتی دغونډیو په سرونوکې یې دهدیرو مړي راوویستل کانټینرونه یې پکې خښ کړل او دعام ولس په کړولو او ځورولو یې لاس پورې کړ.

**داسې هم پیښه شوي چې خلک په شکایت ارسلاته ورغلي چې د نیکونواواجدادو قبرونه مو دملي اردو عسکرو په بل مخ واړول اوپه هدیرو کې یې پوستې جوړې کړې ، ارسلا په ځواب کې ورته ویلي وو چې پروانکوي په هغو قبرونو یو قرن تیرشوی اونور یې اړول یې پکاروو؟!!**

اوس که څه هم ارسلا جمال نشته اوپه خپله مخه تللی ؛ خوناولي او ازغني کروندي یې شاته پریښې دي او شک نشته چې دلوګر دمتدین ولس ازار او ښیراوې به ورپسې رواني او قبرته به یې وررسیږي !

# امریکایانو په افغانستان کې ۴۴۰۰۰۰ پونډه خنثی شوي یورانیم کارولي دي.

پروفیسر یګاساکي چې د جاپان د اوکیناوا په ښار کې یو پیژندل شوی پوه دی، د ۲۰۰۳ په اکتوبر کې د المان په هامبورګ ښار کې یو نړیوال کنفرانس ته وویل چې امریکایانو په افغانستان کې ۴۴۰۰۰۰ پونډه خنثی شوي یورانیم کارولي دي. دده د ټکل پر بنسټ خنثی شوي یورانیم په افغانستان کې تر جاپانه چې د دوهم نړیوالې جګړې پر مهال په کې کارول شوي و، ډیر استعمال شوي.

میرمن لارین ماریت چې د کلیفورنیا په نامتو لابراتوار کې یې د اټومي وسلو په جوړولو کې دنده ترسره کړې د توکیو په نړیوال جنایي تریبون کې د یګاساکي راپور یې تایید کړ د ټولې نړۍ په وړاندې یې په ډاګه کړه چې ددې سترو بشري جنایاتو پړه او مسئولیت د امریکې د ځواکونو په غاړه دی او باید ټوله نړۍ او بشریت ددې جنایاتو او مړګ ژوبلې پوښتنې د بوش د واکمنۍ څخه وکړي.

باید وویل شي چې خنثی شوي یورانیم ۲ بلیونه کاله ژوند لري او کومې ناروغۍ چې ددې وژونکي عنصر له وجې پیدا کیږي هغه د سرطان، لکومیا، اټیزم، د ماغزو او د بدن د نورو غړو معیوبي او د دایمیون د سیستم کمزوري ده.







قتیل

دحیران ژوندون کیسه ده ستا به خوښه شي کنه
تولـه توکه مسخره ده ستا به خوښه شي کنه

دپامیر له څوکو آخوا دغلیم دسترګو خار دي
دومره هسکه مې شمله ده ستا به خوښه شي کنه

چې هیڅ چا ته تیټه نه شوه دهغې غاړې څښتن یم
میړنی ده پښتنه ده ستا به خوښه شي کنه

بی له خدایه بل درشل ته نه رکوع او نه سجود کړي
مسلمانه عقیده ده ستا به خوښه شي کنه

دا د بیټ نیکه سندره دا دکرور بابا ویاړنه
هر یو عر هره دره ده ستا به خوښه شي کنه

ورته مه کوه غلیمه خوار نظر په خوارو سترګو
د خالد بابا دیره ده ستا به خوښه شي کنه

دا زما دغیرت حق دی خیرات نه غواړم له چانه
دنیکه دا مرثیه ده ستا به خوښه شي کنه

زه د هر چا قتیل نه یم نذرانه دخپل وطن یم
دا ویاړنه مې درنه ده ستا به خوښه شي کنه

## نعـــت

### په تحفه کې

'عبرت'

ستا د ښایست په بدرګه کې ؤ یو لمر درسره
یوه سپوږمۍ وه بل د ستورو غټ لښکر درسره

ستا له راتلو سره د جهل تیارې سولې رڼا
چې د تیارو په سینه ښخ سو ها خنجر درسر

رادې ورې مور ته د حیا له میو ډکې پیالې
چې د حیا و حلم کان ؤ هغه غر درسره

دا واړه ښکلي صفتونه دي په تا کې نغښتي
جام د جمشېد، بوی د ختن، ږغ د حیدر درسره

د حیرت ګوتې ورته غاښ باندې عقلونه نیسي
چې حکما ورته حیران دي ها هنر درسر

ستا په دربار کې څو ګړو ښې تحفې وړاندې کړې
زما عبرت دي په تحفه کې وي دا سر درسره

## څوک ولیکي؟

م- وردګ

زموږ د خاورو په کورو به غزل څوک ولیکي؟
په دې کږو وږو کوڅو به غزل څوک ولیکي؟

په مستو مستو رخسارونو خو هر چا ولیکل
په سپورو سپورو اننګو به غزل څوک ولیکي؟

د پوهنتون او مکتبونو صفت هر څوک کوي
خو په دې ورانو مدرسو به غزل څوک ولیکي؟

د بازاري نجونو په حسن کتابونه لیکي
خو د ګودر په پلوشو به غزل څوک ولیکي؟

زه به نور بس کړم تا سې وایئ ورونو
زما په سوو فریادو به غزل څوک ولیکي؟

# بې مثال

عباسي

چې د کفر مخ ته ډال یو هغه موږ یو
چې مین په استقلال یو هغه موږ یو

چې کفارو سره مل وي هغه نور دي
چې په ورانډې یې د بوال یو هغه موږ یو

افغانان یو ټول تاریخ مو په ننګ جوړ دی
چې غیرت او حریت پال یو هغه موږ یو

په پاک دین د عاشقۍ دعوه دار ډېر دي
چې پرې تېر له سر او مال یو هغه موږ یو

د اغیارو زړونه څکه رانه چوي
چې کمال ته یې زوال یو هغه موږ یو

عباسي ! د ننګ او جنګ په هر ډګر کې
چې بې سیال او بې مثال یو هغه موږ یو

# تبریک

(سیف الرحمن)

بې خونده زندګي شه بې دردانو ته تبریک
امید دخوږ ژوندون شه دردمندانو ته تبریک

چې درد ئې د دردمند واثر نه کوي په زړه
دشرم کارنامې شه سنګدلانو ته تبریک

دځان په سوزېدو چې کړي دنورو محفل روڼ
ددې شمعې اوصاف شه پتنګانو ته تبریک

خواري او منتونه چې په سر د نورو اخلي
دا سر شه په دنیا کې سردارانو ته تبریک

دځان په نابودۍ کې چې د نورو وجود ویني
(قتیله) دا حیات شه فدایانو ته تبریک

# دماشوم روزنه

: ملا صاحب په غمګین ارامه غږ سره په داسي حال کې وعظ او نصیحت کاوه چې د لړګي تسبیح یې اړولي موږ ورته غوږ وو ویل یې دا دنیا مسافرخانه ده خو ځیني خلک یې خپل کور بولي کله کله به د ملا له غږ سره چیغې هم ګډې شوي زموږ ځوان ګاونډی مړ وو توره پرده پري خوره وه "كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ" په لیکل شوي وو ما ویل چې ربنتیا هر ژوندی به د مرګ څکه کوي خو زموږ هیر ده. زه د نورو په څیر لاس تر زني د فکرونو په بړی کې ډوب وم. خلک د ولاړیدو په حال کې وو تر څو د جنازي تیاری ونیسي.

د مړی وړو کی وراره د پلار سره راغی په ماشومانه نیمه ژبه یې وویل پلال جانه (پلار) اوس به اور ورته اچــوو پلار یې داسې وښوده چې هیڅ یې نه دي اوریدلي خو د تریو تندی ګونځې یې له ورایه ښکاریدې. ښایي د نو موړی ماشوم په ذهن او فکر زهر لړلو سیریالونو اغیزه کړې وي زما ذهن ډیرو تیرو کلونو ته لاړ هغه ورځ ته چې زموږ سپین ږیری ښوونکي په تخته ولیکل د ماشوم روزنه بیایی داسي وویل: د ماشومانو ذهنونه د سپیني پاڼي په څیر دي هر څه چې په ولیکل شی هغه پري پاتي کیږي که ماشوم ته ښه نظر به ذهن کی ور کړل شی په پاتي عمر کې یی دلاسته راوړلو لپاره هڅه کوي. اسلام د ماشوم په روزنه ډیر تاکید کړی دهوړو کی ته باید سالمه روزنه ور کړل شي تر څو د دوی په ذهنو کې د اخلاقي فساد زمینه برابره نشي بیایی زیاته کړه چې "یعقوب د حضرت یوسف ع په ور که ډیر ژړل له ده مبارک څخه پوښتنه وشوه ای د خدای رسوله دومره ولی ژاړې د دنیا دوی ورځ ژوند به تیر شي په اخرت کی به له خپل زوی سره ووینې؟ یعقوب ع ورته وویل ربنتیا ده چې هلته به سره ووینو مګر زه په دې ژاړم چې زوی مې وړو کی راڅخه بیل شو داسي نه چې بی دینه شي بیا به تل راڅخه جلا شي که ژوندی وي د هغه سالمه روزنه به څوک کوي.

# پند و اندرز؛ آداب و شرایط آن

ابوخالد محمدی

یکی از آداب مهم شریعت اسلامی نصیحت کردن و اندرز دادن مردم به نیکی است که خود دارای آداب خاصی می باشد. این یک امر طبیعی است که آدمیزاد هر دم دچار خطا و نسیان و فراموشی گردد، گاهی اوقات ممکن است شیطان بر شخصی مسلط شود و او را از خدای خود دور سازد، در این موقع است که نیاز به نصیحت و تذکر دارد! ابزار و وسایل دعوت به اسلام گفتار و کردار و رفتار نیکوی مسلمان است تا بدین وسیله مسلمان برای دیگران الگو باشد. چنانچه مسلمان در هر کدام از این موارد کوتاهی کند، بداند که مورد مؤاخذه و محاسبه قرار می گیرد. وظیفه و مسؤولیت دعوت بر عهده‌ی همه‌ی مسلمانان مخصوصاً عالمان است. پیامبر -صلی الله علیه وسلم- می‌فرماید: »بلغوا عنی ولو آیةً« «رسالت مرا تبلیغ کنید اگرچه بیان یک آیه باشد) [روایت بخاری، احمد و ترمذی[

فضیل بن عیاض -رحمه الله- فرمود» :هرگاه عمل خالصانه برای خدا باشد ولی درست انجام نشود، پذیرفته نمی‌شود. و هرگاه درست انجام شود ولی خالص برای خدا نباشد، باز پذیرفته نمی‌شود، تا آنکه هم خالص باشد و هم درست انجام شود. و فرمود: خالص یعنی آنکه عمل تنها برای خدا باشد و درست یعنی آنکه عمل بر طبق سنت نبوی انجام شود.«

خداوند می فرماید} :وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَى تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ] {ذاریات:**۵۵**] «پند و اندرز بده (و یادآوری کن) که پند و اندرز، برای مؤمنان سودمند است«

یادآوری دو نوع است:

۱ -یادآوری آنچه که به طور مشروح و مفصّل تعریف نشده و مردم آن را نمی‌دانند و عقل و سرشت فقط به صورت

خلاصه و مجمل آن را می‌شناسند، خداوند عقل‌ها را بر این سرشته است که خیر را دوست دارند و آن را ترجیح می‌دهند و از شرّ و بدی متنفر هستند، و شریعت خداوند با این امور فطری و عقلی مطابق است. و هر امر و نهی شریعت از مصادیق پند دادن و یادآوری می‌باشد و کمال پند دادن و یادآوری آن است که خیر و خوبی و منافعی که در چیزی نهفته و بدان امر شده است، تذکر داده شود و زیان هایی که از آن نهی شده یادآوری گردد.

۲ -یادآوری آنچه برای مومنان مشخّص و معلوم است امّا غفلت و فراموشی بر آن سایه افکنده است به آنان یادآوری گردد و برایشان تکرار شود تا در اذهانشان ریشه بدواند، و بیدار شوند و به آن عمل کنند و برایشان نشاط و همّت پدید آید؛ همّتی که سبب می‌شود تا آنها استفاده ببرند و مقامشان بالا رود. خداوند متعال خبر داده است که یادآوری و پند دادن به مومنان فایده می‌دهد چون ایمان و ترس از خدا و روی آوردن به او و پیروی کردن از خشنودی وی باعث می شود تا یادآوری و پند دادن به آن‌ها سودمند باشد و موعظه در وجودشان اثر بگذارد. خداوند متعال می فرماید} :فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ الذِّكْرَى، سَيَذَّكَّرُ مَن يَخْشَى، وَيَتَجَنَّبُهَا الْأَشْقَى { ]اعلی: ۹-۱۱] «هرگاه پند و اندرز سودمند واقع شود پند و اندرز بده، زیرا کسی که از خدا می‌ترسد پند و اندرز خواهد گرفت و بدبخت‌ترین فرد از آن روی می گرداند.«

}فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ الذِّكْرَى {به شریعت الهی و آیات او پند بده اگر پند مورد قبول واقع گردد، و موعظه و اندرز بگو اگر کسی گوش کند، خواه از پند دادن تمام هدف آن برآورده شود یا برخی از آن برآورده گردد. مفهوم آیه این را می‌رساند که اگر پند دادن سودمند نباشد به این صورت که پند دادن به شر و بدی بیفزاید یا از خیر و خوبی بکاهد در این صورت نباید پند داد.

پند دادن مردم را به دو گروه تقسیم می‌کند؛ کسانی که استفاده می‌برند و کسانی که استفاده نمی‌برند.

کسانی که از پند استفاده می‌برند آنهایی هستند که از خداوند می‌ترسند و هرگاه انسان بداند که خداوند او را به خاطر کارهایی که کرده است مجازات می‌کند، و از کیفر او بهراسد، از آنچه خداوند را ناخشنود می‌نماید دوری می‌کند و برای انجام دادن کارهای خوب تلاش می‌نماید! این گروه همان مؤمنان هستند که با قرآن پند می‌گیرند:

}فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ] {ق:۴۵] «پس کسی را که از هشدار خدا می‌ترسد با قرآن پند بده». و پند دادن یعنی دوست داشتن خیر و ترجیح دادن و انجام دادن آن، و نفرت داشتن از بدی و پرهیز کردن از آن، که این‌ها اموری فطری هستند و عقل این‌ها را قبول دارد. و کسی پند می پذیرد که از هشدار الهی می‌ترسد. و امّا آن کس که از وعید و هشدار الهی نمی‌ترسد و به آن ایمان نمی‌آورد آن را نمی‌پذیرد. و حجّت بر او اقامه می‌گردد تا نگوید} :مَا جَآءَنَا مِن بَشِيرٍ وَلَا نَذِيرٍ» {هیچ بیم دهنده و مژده دهنده ای نزد ما نیامده است!«

امّا کسی که فاقد ایمان باشد و برای پذیرش پند و اندرز آمادگی داشته باشد پند دادن و یادآوری برای چنین کسی سودمند نخواهد بود. همانند زمین شوره زاری که باران هیچ فایده‌ای برای آن ندارد. این گروه اگر نشانه و معجزه‌ای برایشان بیاید به آن ایمان نمی‌آورند مگر آن که عذاب دردناک را ببینند} وَيَتَجَنَّبُهَا الْأَشْقَى؛ الَّذِي يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرَى» {و اما کسانی که از پند بهره نمی برند بدبخت‌ترین افرادی هستند که وارد بزرگ‌ترین آتش می شوند و با آن می سوزند.«

در جای دیگر می‌فرماید} :فَذَكِّرْ إِنَّمَا أَنتَ مُذَكِّرٌ (۲۱) لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ] {غاشیه: ۲۱-۲۲] «مردم را پند بده [و آنان را اندرز بگوی و از عذاب خدا بیم بده و به بهشت و نعمت‌ها نوید شان بده] چون تو برای دعوت دادن مردم به سوی خدا و پند دادن آن ها مبعوث شده‌ای، و تو بر آن ها مسلط نیستی و نگهبان کارهایشان نمی‌باشی.«

از ابوهریره - رضی الله عنه - روایت شده است که پیامبر - صلی الله علیه و سلم - فرمودند» :کسی که به هدایت دعوت کند، برای او اجری همانند اجر پیروانش در آن هدایت وجود دارد و از اجر آنها نیز چیزی کم نمی‌شود، و کسی که به گمراهی و گناه دعوت کند، گناهش مثل گناهان پیروانش در آن گناه است و از گناه آنها نیز چیزی کم نمی‌شود] .«مسلم روایت کرده است (۲۶۷۴.[(

همانطور که عرض کردم نصیحت کردن باید دارای شرایطی باشد تا مفید واقع شود! اول اینکه هنگام نصیحت کردن باید اخلاص داشت بگونه‌ای که هنگامی که برادر دینی خود را نصیحت می‌کنی، باید فقط برای رضای خدا باشد، و نباید بخاطر ریا و شهرت باشد، و یا برای تنقیص شخصیت دیگران، و آزار دادن آنها.

نصیحت باید با اسلوبی زیبا و پسندیده باشد تا طرفی که مورد نصیحت واقع می‌شود، به‌آن متأثر گردد و آنرا بپذیرد، خداوند می‌فرماید} :ادْعُ إِلِى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ] {نحل: ۱۲۵] «با حکمت و اندرز نیکو، به راه پروردگارت دعوت نما! و با آنها به روشی که نیکوتر است، استدلال و مناظره کن«

امام احمد - رحمه الله - فرمودند» :مردم در هنگام امر به معروف به مدارا و نرمی نیاز دارند نه شدت و تندی، مگر برای مردی که علناً گناه و فسق می‌کند که دیگر حرمتی برایش نیست.«

از "ابی وائل شقیق بن سلمه" -رضی الله عنه-روایت شده است که گفت: ابن‌مسعود -رضی الله عنه-هر پنج‌شنبه یک بار ما را موعظه می گفت و پند و اندرز می داد، مردی به او گفت: ای ابوعبدالرحمن! دوست دارم که هر روز ما را پند و اندرز دهی، گفت: چیزی که مرا از این کار منع می کند، این است که من بدم می‌آید که شما را خسته و ملول کنم و حال شما را در هنگام موعظه در نظر دارم (طوری موعظه می کنم که بی حوصله و خسته نشوید)، چنان که پیامبر -صلی الله علیه وسلم- در موعظه، همیشه حال ما را رعایت می فرمود، مبادا که ما خسته شویم. متفق علیه است؛ [بخاری(۷۰)، مسلم(۲۸۲۱.][

باید فردی را که نصیحت می کنی تنها باشد، و این برای قبول نصیحت بهتر است، زیرا هر کس برادر دینی خود را بطور علنی نصیحت کند، او را رسوا می کند، و هرکس برادر دینی خود را سری نصیحت کند او را سربلند و درستکار می کند. امام شافعی -رحمه الله- می گوید:

تعمدنی بنصحک فی انفراد و جنبی النصیحة فی الجماعة

فان النصح بین الناس نوع من التوبیخ لا أرضی استماعه

فان خالفتنی و عصیت قولی فلا تجزع اذا لم تعط طاعه

یعنی: مرا در تنهایی، نصیحت کن و از نصیحت کردن من در حضور دیگران بپرهیز. زیرا نصیحت کردن میان مردم، نوعی توبیخ بشمار می‌رود که تمایلی به شنیدن آن ندارم و اگر با این خواسته ام مخالفت کردی و به سخنانم گوش فرا ندادی، از عدم اطاعتم نیز نگران نباش.

هدف امام شافعی -رحمه الله- این است که اگر سخنانم را نپذیرفتی و کسی را در حضور مردم نصیحت کردی، از جبهه گیری آن شخص ناراحت نشو. زیرا که او، از تو انتقام می گیرد و در برابر تو جبهه‌گیری می کند و عکس العمل نشان می دهد!

بسیار زیادند جوانانی که گلایه می کنند و می گویند: بعضی از مردم در حضور دیگران از ما انتقاد می‌کنند و ما را ارشاد می نمایند؛ در حالی که این طرز برخورد باعث خشم و ناراحتی ما می‌شود. داعیان باید بدانند که در این کار، هیچگونه مصلحتی وجود ندارد.

باید شخصی که نصیحت می کند به آنچه که می گوید آگاه و عالم باشد، و باید بتواند آنچه را که می گوید اثبات کند تا بتواند امر و نهی را با استدلال قوی انجام دهد، و این برای قبول نصیحت بهتر و پذیرفتنی تر می باشد.

کسی که دارد نصیحت می کند خود به آنچه که می‌خواهد نصیحت کند، عمل نماید، تا از کسانی نباشد که مردم را به معروف امر می کنند، ولی خود را فراموش می کنند. خداوند جل و جلاله از زبان حضرت شعیب چنین نقل می کند} :وَمَا أُرِيدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ إِلَى مَا أَنْهَاكُمْ عَنْهُ] {هود: ۸۸] «من هرگز نمی‌خواهم چیزی که شما را از آن باز می دارم، خودم مرتکب شوم.«

از ابوزید اسامه بن زید بن حارثه -رضی الله عنهما- روایت شده که گفت: از رسول الله -صلی الله علیه وسلم- شنیدم که می فرمود» :مردی در روز قیامت احضار شده و در آتش انداخته می‌شود که روده‌هایش از شمکش خارج است و همچون خری که در آسیاب بسته باشد، آنرا می چرخاند، اهل دوزخ بر او گرد آمده و می گویند: ای فلانی چرا به چنین وضعی گرفتار شدی؟ آیا تو به کارهای خوب امر نمی‌نمودی و از کارهای بد مردم را منع نمی کردی؟

او می گوید: آری به کارهای خوب امر می کردم، ولی خود آنرا بجای نمی‌آوردم و از کارهای بد منع می کردم و آنرا خود انجام می دادم] .«متفق علیه[

ما را از دعای خیر خود بی‌نصیب نگذارید

وآخر دعوانا أن الحمد لله رب العالمین

# سیاف! که ته مزدور نه یي نو .. !!

عبید تنویر

استاد یاسر چې دسیاف تنظیم دسیاسي کمیټي مشر اوپه عین حال کې داتحاد تنظیم دمالي تمویل یو پیژندل شوي سرچینه وه چې په خپلو مخلصانه هڅو اوالله ور کړي ژبي په توسط یې له اسلامي هیوادونو اومخلصو شتمنو مسلمانانو څخه په هره میاشت کې په میلونو ډالر اوریال دسیاف خزانې ته راوړل، اوس که څه هم داسلامي امت هغه نومیالی هستی دمرګ اوژوند په ګونګوسو کې قرار لري ؛ خو دهغه خبري اودحقایقو زریني کربښې خورا ځلنده اودامت په زړه کې نقش دي.

هغه به تل ویل چې مابه له استادسیاف سره په شورااوو اومجالسو کې په همدې ټکي زیاته مناقشه کوله اوماته به یې لږ پراخ نظری هم وایه، چې دخدای په لحاظ داسې ژرژر خلک مه تکفیروی، خصوصا هغه افغانان چې په غرب کې اوسي لکه پخواني (پاچاظاهر شاه)، استاد یاسر به ویل چې زه ترپایه له سیاف سره په دې خبره کې موافق نه وم چې ظاهر شاه کافر دی، ځکه مابه پخواني پاچا عیاش اوفحاش باله اودفساد نسبت به مې ورته کاوه، خوسیاف به ویل چې نه یاسره ! دظاهر شاه په ارتداداو کفر کې یوه زره هم شک اوشبه نشته.

استاد یاسر به دپیغور په ډول سیاف ته ویل چې ( زه په استقامت کې بلکل پخواني پاچا ظاهر شاه ته تسلیم یم، ځکه هغه څلویښت کاله پخواهم دهغه نظام چې دعوه اوعقیده یې پرې درلوده ولاړ وو اودادی څلویښت کاله ورسته هم دهماغه مدعا اودریځ په رڼا کې افغانستان ته راغی اودهغه نظام بابا جوړ شو چې څنګه یې غوښتنه درلوده ؛ خوسیافه تاخو دغه ډول نظام لیدل دخود کوشی په مانا باله اوویل به دي چې دغرب صفته نظام دموټر ارابه به اول زمونږ په ککرو اومریو تیریږي اوبیا به افغانستان ته داخلیږی ؛ولې نه داچې تاخپله ککره دکابل د امریکایي نظام په مخالفت کې خاوري نکړه ، بلکې همدغه نظام ته داستحکام پل جوړ شوي اودهغو ککرو دخاوري کولو لپاره دې مټې رابډوهلي چې څوک دغه امریکاډوله نظام سره مخالفت لري !!!

درنو لوستوالو : سیاف په دې ورستیو کې دپخوانی ټلوالي دوژل شوي مشر احمدشاه مسعود د ۱۳ تلین په نمانځه غونډه کې په نوروچټیاتو سربیره طالبانو ته د مزدورانو نسبت وکړ اوځان یې ازاداومستقل شخص وباله .

نو راځی ! دسیاف همدغه خبره چې طالبان دپردیو مزدوران دي دحقایقو په رڼاکې له هغه څخه وپوښتو اوبیا فیصله په تاسي لوستوالو وکړو چې اصلي غلام اودپردیو معلوم الحاله مزدور او ګوډاګی څوک دی او ایا په

رښتیاهم سیاف د تاریخ په اوږدو کې یو مستقل اوازاد شخصیت پاتې شـــــوی ؟

داستادسیاف دغلامی سلسله اودپر دي تر شا دمعامله ګیریوړومبی اوپه ثبوت رسیدلی دلیل په ۱۳۵۸ کال کې له حفیظ الله امین سره چې دکمونیست رژیم مشر وواوزموږ دزر ګونو مسلمانانوقاتل اود کی جی بی لوی جلاد وو، رابرسیره شو څکه شرمناکه معامله اومعاهده یې ورسره وکړه اوبیاځه موده ورسته په داسې حال کې چې نوم یې په اعدامیانو کې لیکلی وو له زندان څخه ازادشو .

دتعجب ځای دادی چې حفیظ الله امین ! تنهادڅرخي پله په جهنمي زندان کې اسلامي نهضت اواخوانیت ته منسوب ۱۴۰ تنه مهم غړي چې زیاتره داستادسیاف همځولي اوشاګردان وواوله سیاف سره په یوه بلاک کې اوسیدل له تیغه تیر کړل، خو سیاف نه داچې له زندان څخه روغ رمټ ووت، بلکې تر تورخم پوري په ځانګړي روسی والګاه کې هم راورسول شو اوبیا په پیښور کې داتحاداسلامي دګوند رهبر جوړشو، نودی دې ووایي چې حفیظ الله امین سره له دومره بر الا معاملې ورسته هغه د غلامی اوګوړاګیتوب له طوق اوحلقي څخه څنګه ځان باسي اوایادغلامی لړی یې له همدې ځایه پیل نشوه ؟

لـدې ورسـته دی دومـره لـه فریـب اودوکـې ډک وچـې دپیښـور دمهاجرینودیوه کیمپ په یوه خاورینه کوډله کې یې واړول ، دخلکو دجذبولو اوپه خاص ډول دعربانو دخپلولوپه خاطر به یې تل دمزري خولی په سر اودمزري په فرش ناست و، په همدې چلبازی یې هم اکتفا ونکړه دعربانو دتشویق او مسخر کول لپاره یې خپل نوم چې عبدالرسول وو په عبدالرب رسول باندې واړاوه ، څکه چې بیابه عربان وایي چې داستادسیاف په نامه کې دشرک اوبدعت وهم موجوددی ، نووواپه سیافه ! که په رښتیاهم ته مزدور نه واې نو دغه تصحیح تاپخواولې نکول!!

عربانو چې کله ستامداریتوب ولیده اوهم یې په تاکې دوهابیت دځالي دجوړیدا عنصرپیداکړ نوپر ته له کوم فکر اوسوچ څخه یې تاته ته ددریم عمر لقب درکړ او اکثره عربانو چې په هغوی کې داسلام مینه رښتیني اومخلصانه وه داخبره به یې په دعاګانو کې همیش کوله چې یاالله موږ ټول دسیاف په مخ کې قربان کړي خوسیاف ته کومه صدمه ومه رسوي ، څکه چې بیابه په امت کې داسلامي خلافت هیلي څوک ژوندی کوي اوبیاتاله همدغو عربانوسره څه وکړل.

دهجرت په مهال تا ( سیافه ) یوه دارالافتا جوړه کړي وه چې په نورو فتواووسربیره یې یوه فتوا اوس هم زما په یادده اوتابه همیش دغه فتواې دخپلې مصنوعي تقوا دځلولوپه خاطر زمزمه کوله ، هغه داچې عکاسي اوفلم بر داري په اسلام کې حرامه ده اوڅوک چې په فرهنګي کمیټه کې دغه کارسر ته رسوي هغو ته معاش نه ور کړل کیږي ، اوبیا چې کله اسلامي امارت سقوط شو اوستا په دعوت امریکایانو افغانستان اشغال کړ ستاد پور ته فتوامصداق خودسرپه ستر ګوهرچاولیدلوچې څومره ور ته ژمن اومتعهد پاتې شوې ؟

له بل هرچا دمخه دې دلوی تلویزون اودفلم بر داری عصري دستګاه اوسرچینه تاسیس کړه اوهغه لوی عکسونه خو موهم ولیدل چې دخپلې کاندیـدی لپـاره دې څـومره پلـن اوسـوروړجوړ کړي اود کابـل پـه څلـــــــورلاروکې نښـــــــولي وو،

همدارنګه دپخواني پاچا ظاهر شاه په اړه سیافه ستا موقف چې داسلام له دائیري دې وتلی باله، په پغمان کې هغه ته له بې سره اوبې شانه میلمستیانه څه ظاهر شو؟ ډاکټر سپنتاخوهر ځای داخبره دیوه پیغورپه ډول درتـه کـوي چـې ماتر اوسـه دظاهر شـاه لاس نـه دی چـپ کـړی خواستادسیافه تازماپه مخ کې دپغمان په میلمستیاکې دظاهرشاه لاس چـپ کـړ !!؟

نو وواپه چې حرام اوحلال اواسلام او کفر تاته څومره مطرح دی!!؟ اودخپلو ګټو اوسیاست چلولولپاره دغلامی طوق اوستاپه عقیده شر کي حر کـات څـومره خونـداومزه در کـوي ؟

کله چې په پیښور کې دمجاهدینو عبوري حکومت جوړیده ، هغوعربي هیوادونو چې دوهابیت دترویج په لټه اوهڅه کې وو ولې دجهادي تنظیمونو له استاځو اومجلس نه په کلکه غوښتنه کړې وه چې که سیاف مودموقت حکومت دړومبي وزیرپه توګه وټاکه نوپه ړومبي قدم کې به ۴۰ میلونه ډالر در کړو او کنه یوه ریال هم درباندې حرام دی ، هماغه وچې ته د۴۰ میلونو ډالرو په بیه ړومبی وزیر وټاکل شوې اوبیا دې چې څومره لویه شو که اوداړه ماري و کړه اودمجاهدینودحکومت ټوله بودیجه چې په میلونو ډالره وه هضم اونوش جان کړه هغه خوپر ځای پریږده؛ نو وواپه چې په دغسې یوه شرمناکه حالت اوجنایت کې ته بیاهم یومستقل شخص پاتــه کیــدلای شــي ؟

دهجرت پر مهال دې دپاکستان له ړومبی وزیرې بېنظیربهټو سره ترپایه

په دې دليل ونه کتل چې هغه يوه نامحرمه ښځه ده اوله پردی ښځې سره دسړي کتل ناروادي، خوچې کله امريکايي ديمکراسي چې ته ور ته اسلامي جمهوريت وايي راغله غاړې دې بندي چې له څوسوو خارجي اوفاحشو ښځو سره دې وکتل اوناستې پاستې دې ورسره وشوې ، دغه فتوااوتفاوت دې له کوم ځايه راوويست چې له ميرمن ښهتو سره دې نه ليدل ځکه هغه نامحرمه وه خو دامريکا دبهرنيو چاروله وزيرې هيلرې سره دې په لاس سترې مشي کوله او دخپلو مصارفو اوغوښتنو ليست به دې ور کـــاوه !!؟

ښکاري چې اصلا ددين حکم اواسلامي ارشادات ترهغه بريده خپل شعارجوړوي چې شخصي مداريتوب دې پکې ځليږي اومادي زيان نه دررسوي ، ولې له بيخه اوضميره خو پوهيږي چې ته څومره لوی غدار اوغــــلام يـــې ؟

دتيرو ۱۳ کلونوپــه اوږدو کې چې نيږدې يـونيم لکـه مظلـوم افغانـان امريکايي وحشيانو شهيدان اويونيم ميلون يې شکنجه کړل ، په ودونو ، ختمونـو ، جنازواودعـامو افغانـانو دموټرونوپـه کـاروانوچې څـومره امريکايي بمونه وورول شول اوممنوعه وسلې پرې و کارول شوې ، افغاني عفت اوعصمت لوټ شو اودبګرام په هوايي ډګر کې دعظيم الشان قران سوونونسخوته وحشي امريکايي عسکر اورونه واچول ، سيافه ! تاکومه ورځ په دغو جنايتونو تلفظ و کړ چې امريکايانو ظلم اوتيری کړی اوله افغانانو سره خواخوږي څر ګنده وي ، نو ووايه چې اوس بايدمزدور څوک يــــاد کړل شـــي ؟

سيافه تـا دابيولالا هم و کړه چې دطالبانوپه مقابل کې ځکه جنګيږي اومخالفت ورسره کوي چې دطالبانو په مخابرو کې ۱۳ ډوله ژبې اوغږونه اوريدل کيږي ، خوستاپه دعوت چې دامريکا اوناټو پرغلګرې لښکري راغلي ايادهغوی مخابرې په ۴۹ ژبو خبرې نکوي ، سيافه ! ۱۳ ژبې ډيرې دي که ۴۹ ؟ که ته مزدورنه يې نوبيا د ۱۳ په ځای ولې د۴۹ په مقابل کې نــــه جنګيـــږې.

ته وايې چې زه مستقل اوازاديم ، که داخبره رښتياوې نوبيا ولې په ټوله مياشت کې له پغمان څخه يوځل هم کابل ښار ته نه راځې ، بلکې صرف دکـرزي دملي امنيـت پـه شورا ، دمسعوديه تلين اويـاچې کلـه بـوش اواوباماپـه سـفر راشـي نوسـتا دې مړ نيـولی وي هغـه هـم دکـرزي پـه هليکفتر کې راځې ، ته خپل دغه حالت ته کوم نسبت ور کوې ،اياته ځانته له يوبين المللي بزدله انسان اومعلوم الحاله حلقه بګوش غلام څخه عـلاوه بـل څـه نـوم اوعنـوان ور کـولای شـي ؟

رازاق مامون چې يووتلی ژورناليست دی اوستايو اندازه اندېوال هم دی هغـه پـه خپلې يـوې ليکنې وايـي چې زه يوځـل سياف تـه دمر کې لپاره ورغلـم ، دپوښـتنو پـه دوران کـې مـې لـه هغـه وپوښـتل چـې دبشـري حقوقوسازمانونه هميشـه تـا دبشري حقوقو لوی ناقض بولي ، که چيري هغوی تـاکومي بين المللي محکمي تـه وغواړي نوتيـاريې چې حاضر شی اوځواب ووايي ، مامون وايي چې سياف وويل چې هو بلکل به حاضر شم او کوم مانع نه وينې ؛ دمامون په خبره په همدې وخت کې سياف په ډير اوار اوباريک غږ راته وويل : درمورد حضور امريکا لطفاً ازمن سوال نکن! نوسيافوفه ! ووايه چې ترټولو سترغلام اومزدوربه له تاپرته بل څوک وي چې دامريکايـانو پـه محض حضور باندې هم تبصره کول نـه غـواړي ، دنر تـوب ، غيـرت اومسـلماني دريـځ اوموقـف خوپر ځـای پريـږده ؟ که ته په رښتياهم ازاد اومستقل کس يې ، څوځله چې په پغمان او کابل کې ستا کورونه امريکايي عسکرواوسپيانو تالاشي کړل، ټول ساتونکي دې ۱۲ ساته لاس تړلي وو اونه پوهيږم چې ته يې څوځايه تړلی وې ، نو تابيادددغـه امريکـايي يرغـل پـه وړانـدې کومـه وړه خبـره لـه خـولې راوويسته ، دطالبانو سره خودې پنځه کلنه جګړه په دې توجيه کوله چې هغوی له ماڅخه زما مال اودجهاد ګټلې ټوپک اخلي اوداحديث به دې هميش وايه (من قتل دُون ماله فهوه شهيد) سيافه ! امريکايانوستاله کوره څومره وسله يووړه نوبيادې ولې ځان پرې شهيدنکړ !!؟ ښکاري چې ستاټولې خبرې تش دروغ له نيرنګ اودو کې ډ کې اوغلام ډوله دي .

تابه چې يووخت ياسر عرفات دفلسطين دخلکودنماينده په حيث نه پيژانده هغه به دې پراخ ښنسټه باله اودبيت المقدس له ازادی پر ته په بل څه نه قانع کيدې ، اوس ولې دغزې دمسلمانانو په شبخون ګونګ ناست يـې يـوه ورځ دې پـرې زړه وسـوځيد، دادمصـر په اخوانيـانواوزر ګونو مسلمانانوچې دامريکااواسر ايلو پـه خاصـه قومنده ژونـدي وسـوځيدل دشهيدداونی دلمانځنې په غونډه کې خوبه دې هسې محضي اشاره ور ته کړې وای ؟ څه شول ستا هغه دصهيونيزم اواستکبار شعارونه اوډول ډول حنجري هغـه پـه کـوم تندرولګيـدي ؟

ستاچې هست اوبود ټول داسامه بن لادن اودهغه دملګرو له جيبه پوره اوتمويل وګرځيدل ، نن په تاڅه وشول چې هغوی له دين سره په واټن

کې بولي اوداسلام لپاره يې مفيد نه ګڼي ؟ تاچې په ځائيو اوشمشاد غونډونو کې دجهاد په مهال کومې قرقرې کولې هغه دهمدغه شهيداسامه اودهغه دملګرومال اومتاع نه وو ؟ که علت دادی چې دامريکايانو کفر دروسانو له کفرڅخه تفاوت اوبهتري لري ؟ خو نه اصلي خبره داده چې سيافه، ستاضمير اووجدان اصلا غلام اومزدور دی، ځکه ته په هروخت کې خپل بادران لري اودهغوی په ذوق اومزاج دين اوسياست عياروي!
تاچې دخليج په ړومبی جګړه کې ټول عربي حکام لدې امله محکومول چې ولې يې داسلام په مقدسه خاوره کې دصليبيانو پليدقدم تـه دايښيدلو اجازه ورکړه ؟نن په کوم دليل هماغه صليبي عسکروته په خپل ګران هيوادافغانستان کې په عقلي اوشرعي دلايلو اجازه ورکوي اوتاکيد کوي چې پاته دې شي اواړې دې ورکړل شي، نوپه دې وخت کې چې تـه لوی مزدورنشي نوبل بـه څوک وي ؟
تاچې په ۱۳۷۴ کال له يوه روسي ديپلومات سره په دې پلمه ونه کتل چې ويل دي ژيړمخ اوشنې سترګې مې بدې ايسيږي ! ولې نن له صليبي ديپلوماتانوسره چې له روسانو څخه يې مخونه ډيرژيړ اوسترګې يې شنې دي له لويې ژيرې سره ولې په خوراکرو هروخت ويني اوپټ اوښکاره ورتـه وايې چې (دشنوډالروسپيني خلتې تاسې رارسوی اوفتواوې له ما نغـدې نغـدې غـواړی!!
سيافه ! په پغمان کې چې کله تاظاهرشاه ته دعوت کړی وو اوله کرزي دې په هغه مجلس کې غوښتنه کړې وه چې مونږ. سل په سله شريعت اواسلامي نظام غواړو، کرزي په ځواب کې دانه وو درته ويلي چې استاده! که ته په ربښتيا په شريعت مين وای اواسلامي نظام دې غوښتلای نو له شک پرته چې طالبانو سل په سله اوواقعي اسلامي شريعت پلی کړی وو، تااوستا ټلوالې ولې هغه اسلامي نظام پنځه کاله په توپونو ويشته او کله به چې سالنګ اوپنجشير ته اسلام درورسيدنو چې نوره مخه به مو چې نه ليده سالنګونه اوغرونه به موپرې راونړول اوبيابه مومباينونه ورتـه فرش کـړل، استاده دشـريعت اواسـلامي نظام دوره اوخوبونـه اوس مـه وينـه شاوخواوګوره چې څوک درنه تاودې اوهمدوی چاله فضانه ځمکې تـه راښکته کړل نوسيافه که په تاکې اسلامي جرأت اواحساس وای اوپه عمل کې دې هم اسلام تـه وفاداروای کرزي تـه به دې څه ويلي و اوقناعت به دې ورکـــــــــړی وای .
سيافه ! دجهادپه مهال چې تـه يوځل حج تـه تللی وې اوپه ميناکې دې حاجيانو تـه يوه بې ساری تقرير کړی وو، کله چې دتقرير لـه ځايـه روان شې په زرهاووعربانو اوحاجيانوپه تالدې امله ځادرونه موښل اولاسونه به يې درباندې کشکول چې الله تعالی يې له افغان مجاهدينو سره دمحبت پـه نسبت وبښي اوپـه ورځ دحشرالله تعالـی تـه خپلـه دغـه مينـه وسيلـه وګرځـوي، خوداستا دخپلې خـولې خبـره ده چې خپل يـوه قومنـدان ( توريالي ) ته دې چې په څنګ درسره روان و کړې وه چې ( قومندانه، دغه خلک به الله تعالی دخپلې همدغه جذبې اومحبت له امله جنت بيايي خو زما اوستا درک نه لګيږي چې اخره خاتمه به موپه څه کې وي اوجهنم مو ځـــای جوړنشـــي.. .
سيافه ! خپله قضاوت وکړه چې دکفر په صف کې په دريدا اود اسلامي شعايرو اوجهاددد احکاموپه تحريف اودنوروبې شميره جنايتونو پـه رڼا کې ستاهغـه دمينا خبره اوس قطعي اوپـه حقيقت نده اوښتې اوجهنم تـه دورتګ ټولې علامې نه دې درکې پوره اوښکاره شوې !!؟
پـه پـای کې يـوه خبـره درتـه کـوم چې تـه کـه ربښتيا غلام نـه يې نويومطبوعاتي کنفرانس په پغمان کې راوغواړه او صرف دومره ووايه چې امريکايـان دې لـه افغانستان څخـه پرتـه لـه کـوم قيـد اوشرط ووځي، زه کلک باورلرم چې نوربه تـه دطالبانو له فدايانو اوبريدونونجات پيداکوي اوته چې څنګه سوله غواړې طالبان به يې ستاپه توسط کوي اونابه لوی مرکچي ټاکي، خـو فکرنکـوم چې پـه تـاکې دغـه حريـت اواسـتقلال موجودوي اوصرف په يوه کنفرانس کې همدومره يوه وړه خبره هم وکړې !!



# داسلامي نړۍ د حقوقو بنه ادراک او بنه ترجماني....

رحیمی

داکتوبر ۲۴مه دملګرو ملتو نړیوالي ټولنې دتاسیس نیټه ده ، هرکال نړۍ کې دغه نیټه دځانګړو مراسمو په جوړولو سره لمانځل کیږي ، دنور کله پشان سږ کال هم ولمانځل شوه ، دنړۍ په بیلابیلو هیوادو کې په اړه یې غونډې اوسیمنارونه و شول ، له کله راهیسې چې تاسیس شوي نو په نړیوالو چارو کې ددغې ټولنې تاثیر او رول ټاکونکي بڼه لري ...

دملګروملتو ټولنې څخه وړاندې یعنې دلومړي نړیوال جنګ په پای ته رسیدو د"اقوامو انجمن" په نامه یوه نړیواله ټولنه رامنځته شوه ،چې هدف اوموخه یې په نړۍ کې دهیوادونو اوقومونو ترمنځ دجنګونو مخنیوی کول اودهیوادونو په ستونزو اوقضایاوو کې ددرپیمګړي په حیث بیطرفه رول ترسره کول و ...

خو کله چې دویم نړیوال جنګ پیښ شو او پکې بې شمېره انسانانو وژل شول ، هلته جوته شوه ،چې "انجمن اقوام" یوه ناکامه ټولنه ده او په ځای یې د بلې ټولنې رامنځته کولو اته ړتیاده ، هغه و چې دملګروملتونو نړیواله ټولنه دانجمن اقوام دبدیل په حیث رامنځته شوه ،ددې هدف هم دانجمن اقوام پشان په راتلونکې کې دنړۍ دهیوادونو اوقومو نو ترمنځ دجنګونو مخنیوی په سیاسي شخړو اوستونزو کې دددرپیمګړي رول ترسره کول اوپه جنګو کې ښکېل اړخونه دخبرو اومذاکراتو په میز کینول دهغوئ ترمنځ دسولي او پخلاینې لپاره هڅې پرمخ وړل اوهم په نړیوالو پیښو اوقضایاوو کې دمذاکراتو اومعاهداتو نظام جوړول یې داساسي موخو په توګه نړیوالوته اعلان شول

دوخت اوزماني واټن په غځیدو یې کرار کرار په پورته یادو مسؤلیتونو قناعت ونکړ ، دبشري حقوقو ، دمیرمنو حقوقو ، دمهاجرینو نړیوالي کمشنرۍ ، په نامه څو نوري جلا ټولنې او اداري یې هم رامنځته کړې هم یې دیادو ځانګو په لړ کې خپلي اساسي موخي په نښه او اعلان کړې لړ وخت پس یې دینې ، کلتوري ، اوتعلیمي چاروته هم پخپل چوکاټ کې ځای ورکړ او په دې سربیره یې مختلف نړیوال تعاهدات وکړل ، کومو چې اوس مهال نن په نړیواله سطحه دنړیوالو قوانینو بڼه موندلي اوترې په ګټه یوه نړیواله بیورو کراسي په ټوله نړۍ حکومت کوي.

داخبره ښه روښانه ده چې اوس مهال په نړۍ دنړیوالو قوانینو اوتعاهداتو دواکمنۍ راج دی ، دنړۍ ټول هیوادونه اوحکومتونه اړدي چې هغه په کلکه رعایت اوومني ، خپل حکومتونه اونظامونه هغو ته په پام تنظیم او جوړ کړي ، چې ترې دسرغړونې په صورت کې سرغړونکی حکومت اوهیواد له سختو اقتصادي اوسیاسي کلابندیو سره مخ کیږي . هم ورسره سیاسي اودیپلوماتیک اړیکې ځنډول کیږي اوپرضد یې امنیت

شورى کې شوي پريکړي سملاسي پلي کېږي ، هم دا راز په حکم يې دځوهېوادو له پوځونو څخه جوړ پوځ دنړيوالو ځواکونو په نوم سرغړونکيو هېواد وته ليږل کېږي څو هغه په جبر او اکراه دنړيوالو قوانينو درناوي ته اړ کړي ... ديته پر پام دځو دځواکمنو هېوادو پرته دنړۍ بيرته پاتي اوکمزوري هېوادونه په خپل سر دهيڅ کومي پريکړي کولو توان نلري ...

دکارپوهانو په اند: که رښتيا هم ملګرو ملتونو ځان دنړۍ دقومونو اوهېوادونو په ستونزو اوجنګونو کې بيطرفه ښودلي وای او ددرپيمګړي درول ترحده يې خپل کردار محدود کړی وای، ممکن وه چې نن يې کردار ته د بيطرفه اوبې پرې کردار په توګه کتل کيدای خوداسي يې ونکړل

بل لورته داسلامي نړۍ حالت دادی چې هغوئ آن دنکاح ، طلاق ، ميراث ، ديني زدکړو اوديني اقدارلکه ختم نبوت پشان ديوي ايماني اوعقيدوي مسئلي دتعبير اوتشريح په لړ کې ، دميړه اوښځي دخپل منځي اړيکو په باره کې هم سترګي دملګرو ملتونو دلارښوونو په لور نيولي، ترڅو چې په هيڅ اسلامي هېواد کې هم داسلامي قوانينو دنفاذ لپاره کيدونکي جهود دبري ترپړاوه نه رسي ، په اسلامي حکمونو باندې دعمل کولو اجازه هم له ملګرو ملتونو غوښتل کېږي اوهم ګڼ نړيوال قوانين په اسلامي هېوادو کې داسلامي قوانينو دپلي کيدو په وړاندې خنډ دي ، ملګري ملتونه دنړيوالو قوانينو درعايتولو په ضد ډنډوره غږوي ورباندې نړۍ کې دهغو مسلمانانو هيلي زندۍ کړي کوم چې پخپلو هېوادو کې داسلامي قوانينو پلي کيدل غواړي ، دداسي کولو نتيجه داده چې نن دنړۍ په هيڅ يوه برخه اوهېواد کې داسلامي قوانينو دعملي کولو څرک نه ليدل کېږي اونه يې په اړه مسلمانان ازادي لري.

بل لورته دهيوادونو ترمنځ دجنګونو دمخنيوي او دشخړو دحلولو په لړ کې هم دملګرو ملتونو کر دار هيڅکله بيطرفه اوشفاف ندی ، بلکې دومخې بڼه لري ... دايو ښکاره اوژوندی حقيقت دی چې نړيواله ټولنه خپل اساسي هدف ته په رسيدو کې پاته راغلي ، مثلاً : دفلسطين شخړي په حلولو کې دملګرو ملتونو ناکامه کيدل پټ ندي ، خو دسوډان اواندونيزيا په ويشلو اوهلته ددوه نويو عيسوي هېوادونو په رامنځته کولو وياړي اودخپل تاريخ ترټولو لوي برياوي يې شماري ،له دې وجې نړۍ کې مسلمانان ددغې ټولنې کردار ته دشک په نظر ګوري اوتري ناهيلي دي ،ورنه دخير تمه اوتوقع نلري ، دغه ذهنيت وړاندې يوازې دمسلمانانو په عامو وګړو کې محسوسيده ،خو اوس داسي بريښي چې دمسلمانانو حکومتونو اودولتونو هم دغه دتوپيرونو اودوه مخيو څخه ډک چلند محسوس کړی دی ...

هم دا راز دمسلمانانو په ديني ، کلتوري اوتعليمي معاملاتو کې دملګرو ملتونو لاسوهنې اوبربنډي مداخلي ښکاره او پټې ندي هم داسلامي نړۍ په ضدد کفري هېوادو جنګونه اويرغلونه پټ ندي ، چې دملګرو ملتونو نړيواله ټولنه دهغوئ ملاتړي ده او دپريکړه ليکونو په بهانه يې په مسلمانانو درانه اووحشيانه جنګونه تپل شوي ، دغه وجه ده چې نن سبا هرځای اوپه هرهېواد کې دمسلمانو وګړو په اذهانو کې دملګرو ملتونو اداري په اړه دشکوکو اوشبهاتو يوځنګل زرغون شوی اوپه راتلونکي کې انديښنه شته چې دمسلمانانو دننه دغه شته دناراضيتونو اونفرتو نو څپه غځوني وکړي اوديوه ستر نړيوال بحران بڼه ومومي

وړاندې دمليزيا پخواني صدراعظم مهاتير محمد دا غبږ پورته کړی و چې ملګري ملتونه نړۍ کې له مسلمانانو سره نا انصافي کوي ، نوموړي غوښتي وه چې دملګرو ملتونو په نړيوالو قوانينو او تعاهداتو دې له سره بيا کتنه و شي او په هغو کې دې اصلاحات راشي ، په

خاصه تو که دامنیت شوری دویتو ځوک لرونکو هېوادو په لست کې دې مسلمانان هم ځای کړای شي خوهغه مهال دمهاتیر محمد په غوښتنه نړیوالي ټولني څه چې خپله اسلامي هېوادو هم ځانونه کاڼه ونیول او له هغه سره هم غږي نشول

اوس چې دملګرو ملتونو عمر نیږدې اووه لسیزوته نیږدې شوی که مونږ یې ددې ټولې مودې په اړه یوه سرسري څېړنه وکړو نویو مسلمان وګړي ته له دې پرته چې دې ټولې په اسلامي نړۍ کې داسلامي قوانینو دنفاذ په وړانـدې خنډونه اچولي دمسـلمانانو دترقـۍ اوپرمختګ لارې یې بندي کړي ، په مسلمانانو یې ظالمانه جنګونه تپلي دپریکړه لیکونو په پلمه یرغلګرو هېوادو اسلامي هېوادونه اشغال کړي ، ورته نور څه په نظر نه ورزي چې فلسطین افغانستان ، عراق کشمیر اوچیچنیا ددې ښکاره مثالونه دي

ښکاره ده چې یاده ټولنه یوائې دویتو ځواک لرونکو هېوادو دګټو وټو ، اوسیاستونو ستیج دی ، دهغوئ لپاره کار اوچاري پرمخ وړي ، دهغوئ اهداف خوندي کوي اودهغوئ داستعماري سیاستونو وسیله اولار ده.

مونږ وړاندې دیته اشاره وکړه چې په مسلمانانو کې اوس دې احساس غځوني کړي او دغه داحساس اوبیداري په چارواکو اورعایاوو کې یوشان لیدل کیږي ،په دې لړ کې دسعودي عربستان وروستۍ پریکړه چې دملګرو ملتونو دامنیت شوری دغیر دایمي غړیتوب له قبلولو یې ترهغه وخته انکار و کړ څو د امنیت شوری په کړو وړو اوچوکاټ له سره کتنه ونشي اوپکې اصلاحات را نشي دکارپوهانو له نظره : دسعودي عربستان دولت دا نوي پریکړه دواقعیتونو اوحقیقتونو سم اوپه ځای ادراک دی ، اوپه نړیواله سطحه دمسلمانانو دحقوقو ښه ترجماني ده، چې له امله یې دسعودي دولت چارواکې دشابسي ویلو مستحق دي ، پکاردی نور اسلامي

هېوادونه هم ورته ګام واخلي اودملګرو ملتونو په چوکاټ کې داصلاحاتو د غوښتني لړ کې دسعودي عربستان ددریځ ملاتړ وکړي

څرګنده ده چې په ۶۵ کلو کې ملګرو ملتونو دفلسطنیانو په حال ستر ګې پټې کړي ، چې له امله یې هلته اسرایل ورځ تر ورځې خپل ځواک اونفوذ تقویه کوي اوپه مسلمانانو ظلمونه کوي

دلته دپام وړداده چې دسعودي عربستان لخوا ددې پورته شوي ګام په اړه فرانسي هم خپل ملاتړ ښودلی دی ، اودملګرو ملتونو په سازمان کې یې دیولړ اصلاحاتو راوستلو څخه یې پلوي کړي دخبري سرچینو په وینا : دفرانسي هېواد دبهرنیو چارو دوزرات ویاند رومین ندال ویلي: فرانسه دامنیت شوري په اړه دسعودي عربستان له احساساتو پلوي کوي ولې امنیت شوری مفلوج شوي ، چې له امله یې دغه ډول احساسات راټوکیدلي دکتونکو په وینا : دفرانسي دبهرنیو چارو دویاند دغه څرګندوني دملګرو ملتونو دحقیقي څېري ښکارندوي کوي چې واقعاً یاده ټولنه پخپل هدف کې ناکامه شوي اوپکې دمهمو اصلاحاتو درامنځته کولو جدي اړتیا ده که داسي نه وي نوشته ناراضیتونه اونفرتونه به نور هم وغځیږي ....

یادونه : په دې لیکنه کې دوملانا زاهد الراشدي دیوه مضمون او له عربي مطبوعاتو استفاده شوي

# ځېنې افغانستان د یوې مسلمانې ښځې د مسلمانېدو کیسه!

ژباړن: عبدالبصیر عتیق زی

زه هیڅ تصور نشم کولای چې زه څنګه دومره وخت له دې عظیمې ربنا څخه لرې پاتې وم او دا ژوند مې څنګه بې اسلامه تیر کړی دی. انسان په ژوند کښې بغیر له عقیدې او ایمان څخه ژوند نشي کولای، انسان اصولو ته اړتیا لري داسې مذهبي اصولو ته چې له معنویت سره ربط ولري او زړه ته تسکین ور کړي. زه نه پوهیږم چې زه چا او څنګه داسې کار ته راکش کړم چې زه دې لمونځ وکړم، حجاب واغوندم او د الله تعالی د قوانینو او اصولو سره سم ژوند وکړم. زه پوهیږم چې دا یو الهي نعمت دی، او یو الهي پېرزوینه وه چې ما ته یې هدایت وکړ او زه یې دې حق دین ته دعوت کړم.

دا ټول هر څه تصادفي پیښ شول. هغه مهال ما ښوونځي لوست او ښوونځي ته به په شوق او رغبت تللم، خپل درسونه مې لوستل او د نور څه په اړه مې فکر نه کاوه. یوه ورځ ښوونځي ته لاړمه چې کله خپل ټولګي ته ننوتم چې ګورم زما د ټولګیوالې د میز پر سر یوه ورقه پرته وه چې په هغې کښې د لمانځه د اداء کولو طریقې ذکر سوې وې او رسمونه پکښې ایستل شوي وه چې د لمانځې طریقې یې ښوودلې. ما د لمانځه دا لاربښود له ځانه سره واخست، کور ته مې یووړ، او سورة فاتحه، والناس او النصر سورتونه مې له ځانه سره زده کړل، بیا مې اودس زده کړ، ځان مې ښه پر کالیو پټ کړ، او بیا په اطاق کې سم د هماغه لاربښود په طریقو مې لمونځ اداء کړ. زه د هغه تسکین، آرامی، او ډاډ هیڅ تصور او اندازه نشم کولای چې ما ته وروسته له لمانځه څخه پیدا شو. تر دا مهال لا مسلمانه نه وم، ما یوازې سمبولیک حرکات کول، خو کله چې زړه ته مې تسکین پیدا شو نو مې له ځانه سره فکر وکړ چې دا دین حق دی او مسلمانه شوم. بیا مې له ویرې پنځه وخته لمونځونه نشوای کولای او له دې سره دا ویره راته هم پیدا شوه چې زده کړې سورتونه به مې له یاده ووځي. په اول کښې مې یوازې د سهار او ماخوستن لمونځونه په خپله کوټه کې له مور نه پټ کول، وروسته مې تصمیم ونیو چې پنځه وخته لمونځونه به پوره کوم که څه هم مور او یا نور څوک راباندې خبر شي او هر ډول تصمیم چې بیا زما په اړه نیسي پروایې نه راتله. ما دا هر څه د پنځو میاشتو لپاره له موره پټ وساتل خو د والدینو د ورځې په مناسبت چې کله ټول خلک را ټول شوي وو نو ما هلته د خپل اسلام اعلان وکړ او مور او پلار او خلک مې لدې هر څه خبر کړل. مور مې چې کله دا واوریدل، ټکنۍ شوه، شاک یې وخوړ، چیغې یې کړې او قسم یې وکړ چې نور به ما له کوره د باندې پرېنږدي او زه یې په کور کښې بندي کړمه. یوه ورځ تیره شوه او وروسته له یوې ورځې مور راته وویل چې یوازې دوه انتخابه لرې، یا اسلام او یا زه (مور). ما ور ته په سادګۍ وویل چې اسلام! مور مې زما له خبرې حیرانه شوه او پر له پسې یې ژړل. د ډیرو فشارونو او تهدیدونو سربیره مې ثابت قدمي اختیار کړه او ومې نه منله چې د بې دینۍ خوا ته وګرځم. وروسته له یو څه وخت نه، مور مې راسره په دې اړه خبره وکړه او راته یې وویل چې لمونځ دې کوه خو ټیکری به نه پر سر کوې، ما ظاهراً داور سره ومنله خو په پټه مې خپل ټیکری په سر کاوه. وروسته ما له یوې مسلمانې انجلۍ سره پیژند ګلوي پیدا کړه او بیا به د هغې کور ته د لمانځه او نور عبادت لپاره تللم، او کور ته به ناوخته راتلم، کله مې چې مور دا حالت ولیده نو دا یې هم ونشو زغملی. یو ځل بیا یې چیغې او سورې جوړې کړې او دا ځل یې زما حجاب او ټیکری او نور اسلامي کتابونه دا هر څه وسوځل، مبایل یې را څخه واخست او زه یې په یوې رسۍ کلکه ووهلم چې ما ته یې زغم ډیر سخت وه. لدې وروسته ما غوښتل چې پوهنتون ته ولاړه شم، امتحان مې ور کړ خو نمرې مې پوره نشوای کړای چې دې کار زما په مور نور هم بد تأثیر وکړ. وروسته مې په بل ښار کښې یو کالج ته داخله پیدا کړه خو هلته د خپل حجاب پر سر دا اجازه رانکړل شوه چې درسونو ته مې ادامه ور کړم او ما هم نه غوښتل چې د درسونو لپاره ځان بربنډ کړم. دا دوه کاله کیږي چې په کور ناسته یم، خپل لمونځونه کوم، روژې نیسم او همداسې نور عبادات... او مور مې په هیڅ ډول دا اجازه نه راکوي چې زه دې له مسلمانو خویندو سره وګرځم، حجاب واغوندم او له یوه مسلمان سره نکاح وکړم، مګر د هغې کوښښ همیشه دادی چې زه دې له یوه مشرک او بې دینه شخص سره واده وکړم خو ما بیر ته د شرک خوا ته بوځي. خو د الله تعالی په کومک او مرستې سره به دا هر څه حل شي. الله اکبر.

# پرشام د امریکا یرغل خطر رښتیا هم له منځه ولاړ؟

شهید زوی

پرشام دحملې لپاره چې امریکا او متحدینو یې کوم تیزتیاری پیل کړی و او اوباما کومې دړکې کولې تړې داسې معلومېده چې پرشام ډېر زر حمله کېدونکې ده خو دواشنګټن او مسکو تر منځ رامنځته شوي نوي جوړ جاړي فضا بدله او دزر حملې وېره یې دخلکو دفکرونو وویستله.

آیا فضا رښتیا هم بدله شوه ؛کومه توره چې امریکا دتیکي نه راویستلې وه هغه بېرته تیکي ته ننوتې او دحملې کولو خطر بېخي له منځه تللی؟

چا چې دامریکا تاریخ لوستی وي ،ددې هېواد دغزایمو او ارادو نه خبر وي ،دمنځني ختیځ په اړه یې ورته پالیسي معلومه وي ،په ۲۰۰۵ کې چې د سي. آي. ای یو لوړ رتبه مامورد خولې نه راوتلی هغه خبره یې یاده وي چې ویل یې" موږ داسلامي نړۍ اوخصوصا دمنځني ختیځ دنقشې بدلول غواړو چې په سرکې به یې شام وي ،، اوڅوک چې دامریکا لپاره دسیمې په ستراتیژیک اهمیت پوهېږي او دا هم ورته معلومه وي چې دامریکا پالیسي دیهودو په خوښه جوړېږي چې د اسرائیلو یوه غوښتنه هم پکې له پامه نه شي غورځېدای ،او دا یې هم په علم کې وي چې د سیمې دهېوادونو سره داسرائیلو ګټې شخړې تېرې شوي او په راتلونکي کې یې هم ارادې ښې ندي.

نو دچاچې دا هرڅه مخې ته وي هغه به په کامل یقین داوایي چې امریکا پرشام خامخا یرغل کول غواړي خو په مناسب وخت اوحالت کې.

هو ! داحمله به دافغانستان اوعراق په څېر نه وي ،دابه یوائې هوایي بریدوي ؛ دمسلمانو مجاهدینو له وېرې به هیڅکله هم امریکایان دشام ځمکې ته راښکته نه شي ؛ که راکوځېږي یوائې دګولان غرونوته به راکوځېږي ترڅو اسرائیل دمجاهدینو دا احتمالي حملونه وژغوري .

اصل خبره داده چې دامریکا احتمالي حمله نه په غوطه نومي سیمې کې دکیمیاوي موادو دکارولو اوپکې د۱۴ سوه تنانو دوژل کېدوسره تړاو لري او نه هم داله همدې امله رامنځته شوې کومه عاجله پرېکړه ده.

دا هم معلومه خبره ده چې دا دشامي دولت له لورې (که کړې یې وي) دولس پرضد دظلم او وحشت ړومبنۍ پېښه نده ،په شام کې دظلم او جبر لړۍ ډېره اوږده ده ،موده یې د۴ لسیزو نه هم اوړي ؛ پرشام دپلار او ځوي حافظ الاسد او بشارالاسد دمسلط کېدو ۴۳ کلونه وشول ،داسدیانو تړاو دنصیریه هغې فرقې سره دی چې په غته کې شیعه ګان ګڼل کېږي خو عقیدوي او عملي فساد یې هغه ځای ته رسېدلی چې پخپله زیاتره شیعه ګان یې هم مسلمانان نه ګڼي ،دا فرقه دشام دنفوسو ایله ۱۲ سلنه

تشکیلوي خو بیا هم دتېرو ۴۳ کلونو راهیسې دشام په ټول واک دهمدې فرقې تسلط دی، سني مسلمانان یې چېرته په سهوه کې هم لوړو پوستونو کې ندي پرېښې ؛ دحافظ الاسد او بشارالاسد د واکمنۍ پرمهال خو پر کابو ټولې عربي نړۍ دیکتاتوران مسلط وو خو داسد یانو دیکتاتورۍ بېخي بې مثله او حیرانونکې وه ،دمشر واکمن رایه او خواهش دلته اصل او لایحه وه ، اوپه رېښتیني معنی دلته دځنګل قانون و ؛ انساني کرامت او بشري حقوق ټول ترپښو لاندې وو ؛ دحافظ الاسد په ۳۰ کلنې واکمنۍ کې دمسلمانانو سره په ټولیزه توګه او دمسلمانانو دیواځني سیاسي ګوند اخوان المسلمین سره په ځانګړې ډول دشویو ظلمونو رښتیني داستان خورابوګنونکی دی.

له بده مرغه چې په عقیدوي لحاظ دعلویتوب یانصیریتوب ترځنګ دشام ددې ټولو واکمنانو فکري تړاو دبعث ګوند سره و نو بعثي نظریاتو او افکارو ته دودې ورکولو په موخه یې نه یواځې دا چې مسلمانان منظم کېدو ته نه وو پرېښې بلکې دمنظم پلان له مخې یې دټولو هغو سترو نښو او شعایرو دله منځه وړلو هڅې کړې وې چې دمسلمانانو دعظمت او قوت تاریخي منارونه ګڼل کېدل.

دمسلمانانو پرضد دهمدې وحشت او ظلم نه ډکې پالیسۍ دعملي کولو له امله هم روسانو ددې دولت حمایت کولو او هم امریکا او نورلویدیځ ته مقبول و ؛ په یو وخت کې دې دولت ته دروسانو فوځي او دلویدیځ مالي مرستې ورکول کېدې.

نه دلته ازادي وه نه دیموکراسي وه ،انساني کرامت او بشري حقوق ښه په لوړه سویه او سپین سترګۍ ترپښو لاندې کېدل او هیڅ څه هم دلویدیځ نه پټ نه وو خو نه یواځې دا چې امریکا او نورلویدیځ پرې سترګې پټې کړې وې او پرضد یې د اواز پورته کولو او یا اقدام کولو اړتیا نه محسوسوله بلکې په عمل کې یې ددې هر څه نه حمایت هم کولو.

همدا راز په سوریې کې دتېرو دوه نیمو کلونو په داخلي جنګ کې چې کومه ستره وراني رامنځته شوه ټولې نړۍ ته معلومه ده چې په بمي چاودنو کې درامنځته شویو کمو تاوانونو پرته داټولې ورانۍ ددولت دسختو بمباریو په نتیجه کې رامنځته شوي،او تراوسه چې په دې جنګ کې دیو لک او لس زرو پورې انسانان له منځه ولاړل اکثریت یکې دبې وسلو مسلمانانو دی چې په بمباریو او ددولتي فوځونو او ملېشو په لاس په مخامخ ډزووژل شویدي او ۷ میلیونه وګړي بې کوره شول ، نورو هیوادونو ته دکډه شویو شمېر دري نیم میلونو ته ورسېد او څلور میلیونه کوچنیان غذایي مرستو ته سخت اړشول، دملګرو ملتونو دمهاجرینو څانګه وایې چې په ۱۹۹۴ کې په نسلي بنسټونو د روندا قتل عام په نتیجه کې درامنځته شوي هجرت نه پس دشام هجرت تر ټولو ستر هجرت دی.

اوس هم هره میاشت په شام کې تر پنځوزرو پورې انسانان وژل کېږي ؛ داډېر ستر بشري ناورین دی ؛ دا سترې ورانۍ او دبې ګناه انسانانو قتل عام خو له هیچا هم پټ نه و او څه په یوه ورځ کې نه و شوي بلکې پوره ددوه نیمو کلونو خبره ده چې دمخ نیوي لپاره یې که چا جدي اقدام کړی وای په ډېرې اسانۍ یې مخنیوی کېدای شو خو دمخیوي لپاره یې نه اسلامي نړۍ ،نه دملګرو ملتونو اداري او نه هم امریکا او نور لویدیځ معقول او مخلصانه اقدام وکړ.

نړیوالو سترو ځواکونو او خصوصاً امریکا ته دا هیڅ هم په نظر نه راتلل او نه یې هم ددې شدید بحران نه ددې هېواد دراویستلو لپاره قدم پورته کړ بلکې برعکس یې دشام دمسئلې دسیاسي حل لپاره درامخې ته شوي هر کوښښ مخنیوی کړیدی چې پدې اړه په نړیواله سطحه دسختو اعتراضونو لاندې هم راغلې ده ؛ دامریکا او اروپا جاسوسو ادارو دشام دسیاسي حل په لاره کې ددې لپاره

خنډونه رامنځته کول او د شام دخپلمنځي جنګ اورته یې لمن وهله چې دبشارالاسد دنصیري فوځ په لاس پرمسلمانانو دسترو ظلمونو، دبشارالاسد دظالم دولت نه دایران دحمایت اوپدې جنګ کې دحزب الله دراښکېلولو له لارې په ټول منځني ختیځ کې فرقوي شخړو ته لار دعربو قومي اتحاد ټوټه ټوټه او دیني او قومي تشخص یې له منځه ولاړ شي ترڅو د اسرائیلو په نوم دغاصب دولت دټولو شومو صهیونستي پلانونو دعملي کېدو په لار کې شته خنډونه له منځه ولاړ شي، له هرډول مزاحمت پرته ددې غاصب رژیم پراښتیا غوښتونکي مقاصد ترلاسه او دتل لپاره دا ناقانونه اوناروا دولت په امن کې شي.

نود امریکا اهداف چې دبشارالاسد په لاس بې له لوړو مصرفونو ترسره کېږي ولې به یې اداره له منځه وړي.

هدف مې دخبرې اوږدولو نه دا و چې په غوطه نومې سیمې کې که په کیمیاوي موادو د۱۴ سوو انسانانو وژل کېدل ظلم و نو ترې وړاندې په دوه نیمو کلونو کې دا دومره ستر قتل عام هم ظلم و نو ولې پرې سترګې پټې شوې وې؟ دکیمیاوي موادو کارول که ممنوع دي نو آیا په ولسي وګړو ددرندو بمونو راغورځول، عامه وژنه او سترې ورانۍ رامنځته کول ګڼي دوسلو روا او قانوني کارول دي؟

امریکا دخلکو په سترګو کې دخاورو اچولو او دنړۍ دتېرایستلو هڅې کوي خو هڅې یې بې نتیجې دي، نړۍ به ترکومه ځان تېرباسي؟ هرڅوک پدې پوه دي چې دکیمیاوي موادو کارول پلمه کول او پرشام حمله دمسلمانانو په وسایلو دقبضې او د اسلام او مسلمانانو دله منځه وړلو په هیله دپیل شوي صلیبي جنګ برخه ده.

په اسلامي هېوادونو دیرغل کولو لپاره دامریکا په دسیسو کې دا ډېره کامیابه دسیسه وي چې په هغه هېواد کې دخپلو لاسپوڅو په لاس داسې حالات رامنځته کړي چې له امله یې دوخت حاکمان دخپل ولس پرضد ظلم کولو ته لاس واچوي، امریکا بیا نه یوائې دحاکمانو ددې ظلمونو په مقابل کې چوپه خوله پاتې وي بلکه په پټه یې حمایت او په دوهم یا دریم لاس یې مالي او فوځي مرستې هم کوي؛ بیا امریکا په مناسب وخت او حالت کې دیوې نسبتًا خونړۍ پېښې پرضد ناڅاپه اواز پورته کړي؛ درسنیو پرمټ پېښه ښه غټه کړي؛ په اړه یې ښه ډېر تبلیغات وکړي؛ په چاپي اوبرقي رسنیوو




کې دپېښې لړ رېښتوني او ډېر له ځانه جوړ شوي عکسونه خپاره شي؛ له خپل لورې دغوره کړای شویو څېړونکو دحقیقت نه لرې تبصرې، اندېښنې، انسانیت او ټولې نړۍ ته راپېښېدونکي خطرونه، دبشر دحقوقو ترپښو لاندې کېدل، دعامه وژونکو وسلو شتون، داتومي وسلو

دکارولو وېره ،دکیمیاوي موادو کارېدل ،اسلامي بنسټپالنه ،پرسیمې یې اغېزې او داسې نور ټکي دخطر دنښو په صفت یاد او هر غربي واکمن او سیاستوال یې ښه ډېرتکرارکړي ؛ بل لور ته په هغه هېواد کې دغربي این جی اوګانو سره دتړاو لرونکو او نور سیکولر او لبرال عناصرو له لورې ددولت ضد کوچنۍ مظاهرې ډېرې سترې وړاندې کړای شي او نړیوالو ته په ذهن کې دا ورکړل شي چې ګواکې دا دنړۍ ترټولو ستره مسئله ده نو باید ژر یې چاره وشي ،او دسترو خطرونو نه دبشریت دژغورنې لپاره په دې هېواد حمله ترسره شي.

هځې خوتل داوي چې ددې یرغل منظوري دملګرو ملتونو داداري نه واخستل شي خو که دملګرو ملتونو اداري کې څه مشکلات وي نو بیا په نوموړې اداري کې له منظورۍ پرته هم نړیوال غاصب ځواکونه دخپل پلان سره سم په مطلوب هېواد حمله کوي.

دا حقایق که په پام کې ونیسو نو دا ویل ښخي پرځای دي چې امریکا ژر یا څه موده وروسته خامخا په شام حمله کول غواړي.

پاتې شوه دا خبره چې پرشام دحملې سره دغربي ولسونو مخالفت او دملګرو ملتونو په اداري کې دچین او روسې له لورې دویټو حق دکارولو نه پس دامریکا یوائیتوب او دموقف کمزوری یې او بیا دامریکا او روسې ترمنځ داجوړ جاړی رامنځته کېدل چې دمشترک میکانیزم له مخې به دشام دکیمیاوي موادو ټولې زېرمې له منځه وړل کېږي او په بدل کې به یې امریکا حملې نه کولو ته ژمنه پاتې کېږي نو آیاددې جوړ جاړي نه پس رښتیا اوس په شام دامریکا دحملې کولو خطر دتل لپاره له منځه ولاړ او امریکا به حملې نه کولو ته ژمنه پاتې شي؟

دا خبره باید موږ دومره ساده ونه ګڼو چې امریکا په شام حمله کوله ؛ جنګي بېړۍ یې سرې بحیرې ته راوستې وې ،د جنګ هر ډول چمتووالی مکمل شوی و او فوځ دتیارسۍ په حال کې و خو روسانو سره پدې تفاهم ته درسېدلو له امله دامریکا دولت له حملې کولو نه تېرشو او له سیمې کډې باروي.

پرشام دحملې خبره دکومې پېښې سره تړلې او عاجله پرېکړه نده بلکې دا دیو منظم پلان له مخې پر اسلامي هېوادونو دیرغلونو دپېل شوي لړۍ هغه کړۍ ده چې ښش یې لااعلان په ۲۰۰۳ کال کې دعراق دقبضې نه سمدستي وروسته کړی و ؛ موږ باید دا ومنو چې امریکا په هیڅ صورت ددې پلان دعملي کېدو نه تېرېدونکې نده او نه هم دروسې اوچین په څېر هېوادونو ته دا موکه ورکوي چې په وړاندې یې خنډ شي دا پلان اوس په ډېر خطرناک پړاو کې ښکاري ،دا پلان دمسجد اقصی دړنګولو او پرځای یې دهیکل سلیماني جوړولو ، دمنځني ختیځ په ټولو زېرمو دبشپړې قبضې او دعظیم اسرائیلي هېواد درامنځته کولو پلان دی ؛ ددې پلان بنسټ ایښودونکي په امریکا کې مېشت یهود دي چې دامریکا دبهرنۍ پالیسۍ په جوړولو کې یې لوي لاس دی ،دامریکا دااقتصاد په لویې برخې یې قبضه ده او دامریکا دولت ته پورونه ورکوي.

اوس چې ټوله اسلامي نړۍ ،خصوصاً منځنی ختیځ او ورته څېرمه اسلامي هېوادونه ډېر دضعف په دردونکي حالت کې دي ،عراق قبضه شوی، سوډان دوه ټوټې شوی، قذافي وژل شوی او دولت یې له منځه تللی ،دمحمد مرسی اسلامپالی دولت ړنګ او پرځای یې امریکا او اسرائیلو ته نېږدې او دخپل مسلمان ولس قاتل فوځ په واک کې دی ؛ دمنځني ختیځ دهمدې ضعف حالت کې چې امریکا په افغانستان کې ماتی خوړلې اوس یې زیاته توجه ښېرته منځني ختیځ ته اوښتې او دخپل شوم پلان دتطبیق لپاره دسیمې دمسلمانانو دضعف حالت ښه مناسبه موکه ګڼي ،نو ځکه په خوزښت کې راغلې ده او روسیه نه یوائې دا چې په وړاندې یې نه خنډ کېږي بلکې ددې پلان په تطبیق کې یې لوي لاس ښکاري ،اوس دسړې جګړې هغه وخت ندی ، شوروي اتحاد او امریکا ترمنځ چې اقتصادي او عسکري اهدافو ته درسېدلو کومه مسابقه او مقابله روانه

وه اوس هغه حالت ندی، هاغه دسوړ جنګ حالت دمسلمانانو لپاره ډېر ښه و، په اقتصادي او عسکري ډګرونو کې اوس هم مسابقه روانه ده خو حالت يې دمقابلې ندی بلکې داشتراک او تعاون حالت دی نو ځکه اصل پلانونه پټ وي چې دپټ ساتلو او دشنونکو دلوري بدلولو لپاره درسنيوو نه ډېر زيات کار اخستل کېږي.



دلته همداسې ښکاري چې روسيه ددې پټ سترپلان برخه ده چې پرسعودي دحملې کولو دګواښ رامخې ته کېدو سره ترډېره حده ددې شوم پلان نه پردې هم پورته شوې ،په سعودي دروسانو دحملې يا دګواښونو زياتېدو خبره به داسې وي لکه پرکويت دصدام حمله ،دسعودي نه ددفاع په نوم به امريکايان نور ښه زيات فوځونه هم راولي ،بيا به دسعودي داوسنۍ اداري رنګولو او په لويديځ کې روزل شوي لبرال نسل واک ته درسولو لپاره دمصر په څېر حالات رامنځته شي ،ترڅو په دولتي سطحه په هېوادکې دننه داسلامي ثقافت ژوندي ساتلو او نورې نړۍ کې داسلامي دعوت کومې هڅې په دولتي سطحه رواني دي هغه هم له منځه ولاړې شي او دسعودي په تېلو دامريکا داسې بشپړه قبضه راشي چې دشاه فيصل دشهادت نه پس دشاه خالد او بيا دخليج دجنګ پرمهال چې دشاه فهد سره په ډېر نازل نرخ دتېلو اخستلو کوم تړونونه شوي و هغه به ټول له منځه ولاړ شي او ديوې کمزورې او لاسپوڅې ادارې په شتون کې به په ډېرې لږې مودې کې دسعودي دتېلو ټولې زېرمې لوټ شي چې روسان به پکې دلته هم بې برخې نه وي پاتې او پرسورې ديرغل نه پس به هم دسورې دبيا رغاونې زياتره پروژې روسې ته ورکړل شي.

روسيه دمسلمان ، نا مسلمان ، عرب يا عجم هيڅا سره هم خواخوږي نه لري او نه يې دچا سره خواخوږي دپالسۍ برخه ده ؛ روسيه په نړۍ کې خپل مقام او دخپلو اقتصادي ګټو خونديتوب غواړي چې دادواړه يې پام کې نيول شويدي.

غاصب يهوديان (چې دستر اسرائيلي هېواد خوبونه ويني او ددې مزعوم هېواد سرحدات تر مدينې منورې او خيبر پورې غزول غواړي او وايي چې دايې دنيکونو ځمکه وه چې ترې شړل شوي وو ) به دمسلمانانو دهمدې دضعف حالت نه په اسفادې هم دمسجد اقصى دورانولو جسارت وکړي او هم به خپل سرحدات هر لورې ته دومره پراخه کړي چې څومره يې لاله وړاندې دعظيم اسرائيلي دولت نقشه جوړه کړېده.

دادنړيوالو زبر ځواکونو شوم او خورا خطرناک پلان او ناکاره ارادې ښکاري نور به کېږي هماغه چې زموږ رب يې غواړي ؛ دامريکا په مشرۍ کې ټول لويديځ خو افغانستان ته هم دډېرو ناکارو ارادو سره راغلي و ۱۲ کلونه يې څومره کوښښونه وکړل څومره ستر ځاني او مالي تلفات يې قبول کړل خو نتيجه؟ نتيجه دا چې دغريبو افغانانو په لاس اوس امريکا او ټول متحدين يې شکست مني او دشرمېدلي ماتې سره ددې هېواد نه په تېښته دي.

دلته به يې هم ان شاء الله ټول شوم پلانونه شنډ شي اودډېرې سترې ماتې سره مخامخ شي ؛ دټولې عربي نړۍ او خصوصاً دسعودي ځوانانو کې دجهاد سره ډېره زياته مينه ده او دجهاد هغه ډګر ته په ډېر لوړ احساس ورځي کوم کې چې مقابل لورې امريکايان وي ددوئ همدا احساس به ددې زبر ځواکونو ځواک دخاورو سره خاورې کړي او همدلته ماتې به يې په تابوت وروستى ميخ شي.

# حبشه

ت : عبيد قلموال

داوسني ، اتيوپي نوم تر۱۹۴۱ پورې حبشه وو ،چې دحبش له قبيلې څخه دغه نوم اخيستل شوی ، حبشيان په همدغه هيوادکې زيات وګړي دي .

تاريخونو کې دوه نور نومونه هم يادشوي چې يوه ته ( کوش ) ويل کيده چې دحبشه دړومبنيو ميشتوالو خلکو په نامه يادیده ، بل يې (حبشه اکسوم ) وو چې دايودولتي نوم وو دړومبي قرن څخه ترشپږم قرن پورې په حبشه او سودان باندې يې احاطه اواطلاق درلود.

په کال ۱۹۳۶ کې حبشه هيواد دايټالياديرغل هدف وګرځيداواشغال يې کړ، په ۱۹۴۱ کال يې بيرته استقلال ترلاسه کړ، اروپايانو له همدې ورځې ورسته حبشه داتيوپي په نامه ونومولـه او تراوسه په همدې نامه ياديږي .

داتوپي معنی د(سوځول شوو خلکو ځمکه ) ايتوپي هيواد دافريقا په استوايي منطقه کې دسودان او سومالي ترمنځ پروت دی ، دخلکو نژادېې تور اوسامي دی ، اکثريت وګړي يې په امهری او عربی ژبو عبور او تکلم لري .

ايتوپي ، دافريقا په يوه وچه ځمکه کې واقع ده ، نوموړی هيواد ۵ / ۸۲ ميلونه وګړي لري او دافريقا په سطحه دنفوسو په تناسب دويم هيواد بلل کيږي ، پلازمينه يې آديس آبابا

زياتره استوګن يې دمسيحيت ارتودوکس او داسلام دمقدس دين پيروان دي ، حکومت يې د ۱۹۷۵کال دمارچ تر۲۱ نيټې پورې مشروطه سلطنتي وو ، په همدې کال کې دپوځيانو په کودتا په سيوسياليستی دولت واوښت .

داسلام سپيڅلي پيغمبرصلی الله عليه وسلم ، دحبشی دپاچا ( نجاشي ) څخه ښه خاطره لرله ، له همدې امله يې امرفرمايلی وو چې دحبشي له خلکو سره اړيکي قايمي کړي .

ورځ تربلې په مکه مکرمه کې دمسلمانو شميره اوجرأت زياتيده، له بل لوري دمکې دمشرکينو له خواهم په مسلمانانو کړی تنګيدله ازار او اذيت يې ظالمانه وو . نبي عليه السلام ددې لپاره چې دمسلمانانو له تکليف څخه دقريشو دظلم لاس لنډکړي او مسلمانان ترې وژغوري ، نو دموقت وخت لپاره يې امر وکړ چې يوڅه مسلمانان حبشي ته هجرت وکړي ،ځکه دحبشي پاچا عادل کس دی او ترهغه وخته چې پرمسلمانانو پراخي راځي نوپه حبشه کې ژوند تيرولی شي .

هماغه وو چې يوشمير مسلمانانو حبشی ته هجرت وکړاوپه پوره ازادی يې هلته خپل هغه ديني فرايض او عبادات ترسره کول چې په مکه کې به يې دقريشو له لاسه نشو اداکولای .

دمکي قريش چې په حبشه کې دمهاجرو مسلمانانو له ارام ژوند او دعبادت له ازادي فضا څخه خبر شول نو سخت پريشان شول په خپلو منځونو کې يې مشوره وکړه چې حبشي ته له قيمتي تحفو سره يو پلاوی وليږي ترڅو نجاشي پاچا قايل کړي چې مهاجر مسلمانان بيرته مکي ته راوليږي او داسلام درشد او ترقی مخه ونيسي .

دمکي دقريشو پلاوی چې کله حبشي ته ولاړ نو اول يې دحبشي له موثرو قومي اومشرانو خلکو سره وليدل هغوی ته يې يواندازه تحفي هم ورکړي او بيايې ترينه وغوښتل چې دمکي يوشمير ځوانان چې نادانه اوغريب وګړي دي هغوی ستاسې سيمي ته راغلي ، نو که تاسي له موږ سره يوځای پاچا نجاشي ته ولاړشی او زموږ ددغه عرض تاييد وکړی ترڅو مسلمانان ياموږ ته تسليم کړي اويايي له حبشي څخه خارج او بيرته مکی ته وليږي.

پلاوی دحبشي له مشرانو سره يوځای دنجاشي حضورته ورغلل او قيمتي تحفې يې هغه ته وړاندې کړې مشرانو له نجاشي په يوغږ وغوښتل چې دمکې دپلاوي خبره حق په جانب ده بايدومنل شي او مسلمانان له حبشي نه وويستل شي .

خو نجاشي دهغوی خبرو ته تسلم نشو وي ويل : داځنګه کيدای شي چې يوڅا زمونږ سيمي اوقلمرو ته پناه راوړي وي او بيادهغوپه غياب کې زه داحکم وکړم چې خارج دې شي ، زه بايد اول پوره تحقيق وکړم چې هغوی ولې دلته راغلي او بيا هغوی له نيږدې وګورم ، ورسته به فيصله کيږي!!

دقريشو پلاوي چې کله دنجاشي دغه خبري واوريدي ، نو رنګونه يې والوتل ، زړونويې ټکانونه شروع کړل او په ډير عجز او زاريو يې له نجاشي وغوښتل چې مونږ له خپلې مدعاتيريو کوم مسلمانان چې حبشي ته راغلي ، هغوی دې همدلته پاتې شي ، پلاوی پوهيده چې که مسلمانان مجلس ته حاضر شي نو هغوی اورمرو حقايق وايي ، خپل مظلوميت به ډاګه کوي او دقريشو تعداوي ظاهروي او هم داسلام ددين دحقانيت خبره بيانوي داسې نه چې مجلس ټول په اهتزاز راولي او نجاشي نو رهم ترې متاثره شي.

نجاشي امر وکړ چې دمهاجرينو څه استاځي مجلس ته راولي ،نجاشي همدارنګه نوموړي مجلس ته ټول دولتي چارواکي اوهم عيسوي پاپان او ماهرين راوغوښتل .

مسلمانان چې کله دنجاشي له امر څخه خبرشول نو سخت پريشانه شول ، ځکه هغوی دقريشو له نقشي اوهغو تحفو څخه خبرشوی وو چې لاله وړاندې يې دحبشي په موټرو چارواکو او مشرانو ويشلي وي .

مسلمانانوپه خپل منځ کې دامشوره وکړه چې دنجاشي دعوت به قبلوي ، خو پوره حقايق به ورته بيانوي او اصلي خبره به ورته کوي چې دوی ولې مکه پرې ايښي او حبشي ته دکومو دلايلو له مخې مهاجرشوي .

دمسلمانانو دپلاوي مشري چې حضرت جعفر رضی الله عنه کوله په داسې حال کې دنجاشي مجلس ته داخل او ننوتل چې پرته له سلام ويلويې نوريو نامشروع رسم اوآداب لکه انحنا، دخاور مچول او نور ترسره نکړل .

دغه کار چې دپاچاهي مجلس له ادابو ښکاره خلاف ورزي وه، فورا په مسلمانانو اعتراض وشو چې تاسې ولې دغه اداب لحاظ نکړل ، دمسلمانانو استاځي ورته وويل : زمونږ دين چې له امله يې دوی دلته پناه راوړي دااجازه نه راکوي چې پرته له يوه الله نه بل چاته تضرع اوعاجزي وکړو!!

دمسلمانانو په دغه عمل اووينا په مجلس رعب او اثر وغورځيد، نجاشي فورا له هغو وپوښتل چې داځنګه دين دی چې زمونږ له دين او پخوانيو اديانوڅخه توپير اوتمايزلري؟

دمسلمانانو استاځي وويل: مونږ يوداسې قوم وو چې په جهل او ناداني کې موژوندتيراوو، دبوتانو عبادت به مو کاوه، مردارې به مو خوړلې ، له خپلوانو سره به موقطع علاقه او ترحم کاوه ، له ګاونډيانو سره به مو بدچلند درلود، دفحشاوو او بيدينيو مرتکبين به وو ، زمونږ قويترو او مالدارترينو به ضعيفان او بې وسه خوړل او ظلمونه به يې پرې کول ، په دغسې يوه حالت کې الله تعالی زمونږ دنجات لپاره حضرت محمدصلی الله عليه وسلم په پيغمبری مبعوث کړ ، چې دهغه دنسب ، صفايي او سپيڅلتوب په اړه تاسې ښه معلومات لری ، هغه مونږ ته دتوحيداو ديوه الله تعالی دعبادت پيغام راوړ او دهغو بوتانو چې له ډبرواو لرګيو جوړکړل شوي وو له هغه نه يې دمنع حکم وکړ ، همدارنګه يې مونږ ته دصداقت او اخلاص ، يوتربله دصله رحمی ، امانت داری ، له بې وزلو اويتمانو سره دمرستی او له خپلو او همسايګانو سره دترحم او مرستې لاربښونې ولورولي اوهم له ناروا وو لکه زنا ، فحش، شراب خوری او سودکولو څخه منع کړو ، مونږ هم په هغه ايمان راوړ او دهغه تصديق مووکړ؛ خوولې زمونږ قوم پرمونږ يرغل راوړ مونږيې تنګ کړواو مونږيې ديته مجبورولو چې له دغه نجات بښونکي دين چې هغه اسلام دی مخ واړوو اوبيرته دجهالت او تياريکيو دوري ته مخه کړو ، چون مونږ دقوم دغه ناروا خبره ردکړه نو مونږ مجبورشو چې دخپل دين دساتلو لپاره ديوڅه مودې لپاره حبشي ته هجرت وکړو .

نجاشي ، دمسلمانانو له استاځي څخه پوښتنه وکړه چې ستاسې پيغمبر ته چې له بلې دنيا څخه دوحی په ذريعه څه راغلي هغه ستا ياددی او مونږ ته يې ويلای شي ؟

استاځي ورته وويل چې هو ، نجاشي ورته وويل چې لږيې ووايه :

دمسلمانانو استاځي د مجلس دمقتضابرابر دقرانكريم دمريم سورت څوهغه ايتونه تلاوت كړل چې په هغه كې دعيسى ، يحى او زكريا عليهم السلام ذكر پكې راغلى ، حضرت جعفر رضى الله عنه ، په دې ترڅ كې چې په اسلام كې يې دحضرت عيسى عليه السلام ، ددرناوي اومرتبې يادونه وكړه په عين حال كې يې په واضحو ټكو مجلس ته وويل چې قرانكريم دحضرت عيسى اوحضرت مريم تقديس بيانوي اودالوهيت له حريم څخه يې ليري ساتي !!

په مجلس يوه عجيبه فضا حاكمه شوه ، دنجاشي په شمول دمسيحيت دزياترو پاپانو له سترګو اوښكې جاري شوي ، په همدې وخت كې نجاشي پاچا وويل چې په خداى قسم هغه څه چې حضرت عيسى ويلي حقيقت يې همدلته پروت دى ، دغه خبري او دحضرت عيسى خبري له يوې قبيلې څخه دي

نجاشي ، دقريشو پلاوي ته مخ واړاوه چې ولاړشى اوخپلې تحفې مو هم بيرته درسره يوسى ستاسي نقشه باطله او نامكنه ده دغه مهاجرين به زه هيڅكله هم له حبشى څخه ونه باسم .

دهجرت په شپږم كال داسلام پيغمبرصلى الله عليه وسلم ، دحبشې پاچا ته د عمرو بن اميه رضي الله عنه په لاس د جعفر بن ابى طالب او دهغه دملګرو په هكله نجاشي ته ليک ور وليږلو او داسې يې ورته وليكل :

بسم الله الرحمن الرحيم

د محمد رسول الله له خوا د حبشې پاچا نجاشي اصحمه ته !
سلامونه

زه ستا په وړاندې د هغه رب ستاينه كوم چې پاک ذات او پنا وركونكى پاچا دى او ددې خبرې ګواهي كوم چې عيسى عليه السلام د خداى جل جلاله له لورې يو روح او هغه فرمان و چې پاكې اوسپيڅلې مريمې ته يې ور وليږه هغې حمل واخيست او عيسى عليه السلام د ادم عليه السلام غوندې د خداى پاک په ځانګړي قدرت او پوكي ترې پيدا شو، زه تاته بلنه دركوم چې د يوه خداى جل جلاله بندګي كوه او په كلكه يې اطاعت كوه او زما لار خپله كړه او څه چې پر ما نازل شوي پر هغو باور ولره ځكه چې زه دالله رسول يم ، بله دا چې ما خپل د كاكا زوى جعفر له يو ډله ملګرو سره تاته در وليږل؛ نو چې درشي ښه پالنه يې وكړه او له كبر نه لاس واخله ، دغه راز زه ستاټول لښكر ته د اسلام بلنه دركوم او تاسو ته مې د الله پيغام ورساوه .

دا خبرې ستاسو د ښيګڼې له پاره دي نوزما نصيحت ومنئ

او د نيكي لارې پر لارويانو دې سلام وي . !

دنجاشي ځوابي ليک:

بسم الله الرحمن الرحيم

محمدرسول الله صلى الله عليه وسلم ته د نجاشي اصحمه بن البحر له خوا!

په تادې سلامونه او د خداى رحمتونه وي.

او بيا: هغه ذات چې هيڅ سيال نه لري زه يې د اسلام په سپيڅلې لار روان كړم.

يارسول الله! ستاسو مبارک ليک ما تر لاسه كړ، تاسو په ليک كې د عيسى عليه السلام يادونه كړې وه؛ نوزما دې دځمكې او اسمانونو په رب قسم وي! چې تاسو څه ليكلي همدا د عيسى عليه السلام مرتبه ده، بله دا چې زه ستاسو د ليک په ټولو خبرو وپوهيدم مونږ د جعفر اود هغه د ملګرو ښه پالنه او ميلمستيا وكړه او زه په دې خبره ګواه يم چې ته د الله ريښتونى پيغمبر يې او د جعفر په لاس زه تاسو سره بيعت كوم او د خداى پاک ټول حكمونه پر ځان منم، بله دا چې د اوس له پاره زه خپل زوى "اريحا" تاسو ته درليږم كه تاسو واياست نو زه هم درتللو ته تيار يم ځكه زه باور لرم چې تاسو څه واياست هغه حق دى

نجاشي ته چې كله درسول الله دغه ليک ورسيده ، هغه يې چپ كړ بيا يې په سراو سترګوكيښود اواحترام له وجې له خپل تخت څخه راكوز شواو دالله تعالى په وحدانيت او درسول صلى الله عليه وسلم په رسالت يې شاهدي وويله .

دهجرت په اتم كال نجاشي مړ شو ، رسول اكرم صلى الله عليه وسلم ، چې كله خبر شو الله تعالى حجابونه ورته ليري كړل اوله خپلو صحابه كراموسره يې په مدينه منورې كې پرې جنازه وكړه .

# گاردین: آمریکا مکالمات تلفنی ۳۵ رهبر دنیا را شنود کرده است

روزنامه انگلیسی گاردین با انتشار سند دیگری از اسناد اسنودن، تحلیلگر سابق سازمان سیا افشا کرد آمریکا مکالمات تلفونی ۳۵ رهبر دنیا را شنود کرده است.

به گزارش مشرق به نقل از فارس، در شرایطی که گزارش‌هایی از شنود تلفنی مکالمات صدراعظم آلمان، رئیس جمهور مکزیک و شهروندان فرانسوی، فشارها بر دولت اوباما به خاطر رسوایی جاسوسی‌های دولت را شدت بخشیده است، روزنامه انگلیسی گاردین هم سند دیگری از اسناد افشاگرانه ادوارد اسنودن منتشر کرد که نشان می دهد آژانس امنیت ملی آمریکا مکالمات 35 رهبر جهان را شنود کرده است.

بر اساس این گزارش، آژانس امنیت ملی آمریکا پس از آنکه یک مقام دولتی این کشور شماره تلفن‌های مربوط به 35 رهبر دنیا را در اختیار این سازمان قرار داد از آنها جاسوسی تلفنی کرده است.

مقام آمریکایی که این شماره تلفن‌ها را در اختیار آژانس امنیت ملی قرار داده از سازمانی غیر از این سازمان بوده است.

این یادداشت محرمانه نشان می‌دهد که آژانس امنیت ملی مقامات بلندپایه در نهادهای «مشتری» خود، مانند کاخ سفید، وزارت خارجه و پنتاگون را ترغیب می‌کند تا دفترچه‌های یادداشت تلفون خود را به این آژانس بدهند تا بتواند شماره تلفون سیاستمداران خارجی را به سامانه‌های تجسس خود اضافه کند.

این سند همچنین نشان می دهد یک مقام آمریکایی که نامش ذکر نشده بیش از 200 شماره تلفن، از جمله شماره تلفون 35 رهبر جهان را در اختیار این آژانس قرار داده است. در این سند نامی از هیچکدام از این 35 رهبر برده نشده است. آژانس امنیت ملی سریعاً «مأمور» تجسس از این افراد شده است.

این سند آژانس امنیت ملی که در اختیار گاردین قرار گرفته نشان می‌دهد سندی مربوط به اکتبر 2006 است و خطاب به کارکنان «اداره اطلاعات سیگنال‌ها»، از اداره‌های داخلی آژانس امنیت ملی آمریکا صادر شده است. عنوان سند مذکور چنین است: «مشتری‌ها می‌توانند به اداره اطلاعات سیگنال‌ها برای به دست آوردن شماره تلفن‌های قابل ردیابی کمک کنند«.

در آغاز این سند نمونه‌ای از کمک مقامات آمریکاییِ آشنا با رهبران و سیاستمداران دنیا به جاسوسی‌های این آژانس ذکر شده است.

در ابتدای این سند آمده است: «در یک مورد اخیر، یک مقام آمریکایی 200 شماره تلفون از 35 رهبر دنیا را در اختیار آژانس امنیت ملی قرار داد«.

در ادامه تصریح شده که این شماره تلفون‌ها به این سازمان کمک کرده جزئیاتی از شماره تلفون‌های جدید به دست آورده و آنها را به لیست تجسس خود اضافه کند.

در این سند همچنین اعتراف شده که شنود این شماره‌ها «اطلاعات قابل گزارش اندکی» به دست داده است.

# افغانان باید سوچه اسلامي سیاست خپله تګلاره وګرځوي!!

ابراهیم ـ عزیز

پرمعاصره نړۍ ـ حاکم نړیوال قوانین اونړیوالې پریکړې دنړیوالوقوتونوپه لاس کې اسیران دي ، هغه قوتونه چې دولسونوپه استبعادکې یې پیړۍ ـ پیړۍ ـ تیرې کړې .

همداعلت دی چې دنړیوالوقوانینو دمادوشمیر زرګونو ته رسیږي ، او دملکرو ملتونو اونورو نړیوالو ادارو دپریکړو شمیره هم په زرګونودي ، خوبیاهم په کې صراحت سره داسې څه نه ترسترګوکیږي چې دملي خپلواکۍ لپاره وسلوال مقاومت مشروع وګڼي ، که په کوم ځای کې ترسترګوشي هغه به بیادډیرواسبابوله کبله دهمدغو نړیوالوقوتونولپاره دمنلوور نه وي ! خلاصه داچې معاصرنړیوال نظام چې په سرکې یې دملګرو ملتونودامنیت شوراواقع ده ، دعدالت له اصولواوداوسنۍ نړۍ له غوښتنواوارتیاوو سره په کلک ټکرکې دی و داقوانین اونظام جوهري بدلون ته اړتیالري .

اسلامي شریعت ، قانون جوړونه یاتحلیل اوتحریم دالله تعالی له اختصاصي اوصافو څخه ګڼي ، که څوک داواک په خپل لاس کې واخلي اویابل چاته ددې واک په ثبوت معتقدشي ، په حقیقت کې یې په شعوري یاغیرشعوري ډول ځان یابل څوک له الله سره په دې صفت کې شریک کړی دی

په دې اړه ګڼ شمیردلایل موجوددي اوداحکم داسلامي شریعت له مهمواوڅرګندواحکامو څخه دی ، تردې چې جهل په کې عذرنه ګڼل کیږي .

دلته په اړه صرف دوه حدیثونه راوړو :

لومړی : له عبدالله بن عباس رضی الله عنهمانه روایت دی چې دیومنافق ( چې په ظاهره یې اسلام قبول کړی و ) اویویهودي ترمنځ شخړه رامنځته شوه ، یهودي وویل چې دفیصلې لپاره محمد( صلی الله علیه وسلم ) ته ورځو اومنافق ویل چې کعب بن اشرف ( یهودي ) ته ورځو ، خویهودي ورسره ونه منله ، همغه وچې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دفیصلې لپاره ورغلل ، دهغه صلی الله علیه وسلم فیصله دیهودي په ګټه تمامه شوه ، منافق چې په دې فیصلې راضي نه وو له یهودي سره کلک شو چې حضرت عمرؓ ته ورځو ، عمرؓ ته دواړه ورغلل اویهودي ورته کیسه تیره کړه ، چې زمونږ په منځ کې محمد( صلی الله علیه وسلم ) فیصله وکړه چې زمانه ګټه وه خودغه کس یې په فیصلې راضي نشواوغواړي چې ته موږ په منځ کې فیصله وکړې ، عمرؓ منافق ته وویل : ایاهمداسې ده ؟ هغه وویل چې هو ، نوحضرت عمرؓ دواړوته وویل چې زما تر راتلو پورې تم شئ ، اوپه خپله کورته ننوت ، له کوره توره په لاس رابهر شو ، دمنافق سرېې له تنې څخه جداکړ اوویې ویل چې ( هکذاأقضی بین من لم یرض بقضاء الله وقضاء رسوله ـ) معالم التنزیل ـ یعنې زه خودغسې فیصله کوم دهغه چاپه منځ کې چې دالله اودده دپیغمبرفیصله نه مني ! همغه وو چې وحی نازله شوه اودعمر فاروق دغه فیصله یې تاییدکړه اودهغوخلکوایمان یې

ريښتينی ونه ګاڼه چې درسول الله له پريکړوسرغړونه کوي اوغواړي په بل څه فيصله وکړي .

دوهم : عدي بن حاتم رضی الله عنه له اسلام څخه وړاندې نصراني و ، نوموړی وايی : زه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ورغلم اودسروزروصليب مې په غاړه و ، نوراته يې امر وکړچې دغه بوت دې له غاړې نه ګوزار کړه ، بيامې ترې واوريدل چې دايت يې ولوست : اتخذواحبارهم ورهبانهم اربابامن دون الله ) توبه مي ۵ ، يعنې دوی خپل علماۀ اوراهبان له الله نه په غيرکارسازان اوخدايان جوړکړي وو اوبيايې دهمدې ايت په تفسيرکې وفرمايل : متوجه اوسی ! دوی خودخپلو علماووا ومشايخوعبادت نه و کړی مګردوی داسې وه چې کوم شی به يې ورته حلال کړهغه به يې حلال ګاڼه اوچې کوم شی به يې حرام کړهغه به يې حرام .

نن ورځ نړيوالواوغيرنړيوالوقانون جوړونکو دهمغو علماوو اوراهبانو ځای نيولی په نړيوالوشخړوکې دملګروملتونو دامنيت شورا عبادت کيږي اوپه کورنيومسايلو کې دپارلمانونو ، هغه چې دتقنين دنده پرغاړه لري .

دښمن دهمدې ټکي داهميت په درک کولو سره ددې لپاره هلې ځلې نه کوي چې مسلمانان دبوت سجدې ته دعوت کړي ، بلکې په يو معاصراسلوب يې په شرک اوبشيرې غلامۍ کې اخته کړی دی ، مسلمان ولسونه يې ديمکرا تيکو پارلمانونو په عبادت قانع کړي اوحکومتونه يې دکفري نړيوالو قانون جوړونکو په عبادت.

دافغانستان مسلمان ولس چې دقرآن اوسنت په رڼاکې خپل جهادته ادامه ورکوي ، نه دملګروملتونوپر فيصلو مکلف دي ، نه دنورونړيوالواداروپرکفري قوانينواونه ورته اړتيالري ، بايدچې له دښمن سره دتعامل پروخت دملګرو ملتونودمنشور ، دجينوادکانوينسونونواودنوروورته قوانينوپرځای قرآن اونبوي سيرت ته مراجعه وکړي اوسوچه اسلامي سياست خپله تګلاره وګرځوي .

## په زړه پوري اسلامی معلومات

۱- د حضرت محمد (ص) ملاقات په لومړي آسمان کې د حضرت ادم (ع) سره شوی ؤ.
۲- حضرت حمزه (رض) د حضرت محمد (ص) کا کا ؤ.
۳- د رسول الله (ص) شکل مبارک د حضرت ابراهيم (ع) په شان ؤ.
۴- د حضرت محمد (ص) اخيرنۍ غزا د تبوک غزا وه.
۵- هغه کافر ابن قميه وه چې د احد په غزا کې يې د حضرت محمد (ص) غاښونه مبارک شهيدان کړي وه.
۶- حضرت محمد (ص) دوه ځله حضرت جبرائيل (ع) په خپل اصلي صورت کې ليدلی ؤ.
۷- د الله (ج) په حکم سره تر ټولو لومړی چې کوم پيغمبر هجرت کړی وه حضرت لوط (ع) ؤ.
۸- د حضرت موسی (ع) ذکر يو سل او شپږ دېرش ځله په قرآنکريم کې شوی دی.
۹- حضرت ابراهيم (ع) د حضرت لوط (ع) کا کا ؤ.
۱۰- د حضرت ادم (ع) عمر زر کاله ؤ.
۱۱- هغه پيغمبران چې په ماشوموالي کې پيغمبري ورکړل شوې ده حضرت عيسی (ع) او حضرت يحيی (ع) وه.
۱۲- هغه پيغمبر چې په صبر کې ډېر مشهور وه حضرت ايوب (ع) ؤ.
۱۳- هغه پيغمبر چې په حسن کې ډېر مشهور وه حضرت يوسف (ع) ؤ.
۱۴- د حضرت يحيی (ع) مزار په دمشق کې دی.
۱۵- تر ټولو پيغمبرانو لومړی حضرت ادريس (ع) قلم استعمال کړی ؤ.
۱۶-.(امر ) د فرات غاړه د حضرت ابراهيم (ع) د زېږېدلو ځای دی
۱۷- د حضرت نوح (ع) په قوم باندې د اوبو عذاب راغلی ؤ.
۱۸- شيداد د حضرت هود (ع) په زمانه کې تېر شوی دی.
۱۹- د حضرت عبدالله ابن مسعود (رض) جنازه حضرت عثمان غني (رض) کړې وه.
۲۰- هغه خليفه چې هغه د خپل ذاتي حفاظت د پاره هيڅ يو محافظ نه وو مقرر کړی حضرت عمر بن عبدالعزيز (رض) ؤ.

# پوهنتون امریکایی افغانستان و نگرانی در مورد مرحله پس از خروج نیروهای خارجی

باو جود دیوارهای بلند وموانع زیاد امنیتي در پوهنتـــون امریکـــایي کابـل، رفـت و آمـد بـه ایـن پوهنتـــون آســان است، چون هیچ نشان یــا پــرچم امریکــا در آنجا به مشاهده نمي رسد.

اما وقتي شخصي از دروازه ورودی به داخل صحن قدم بر مي دارد، داخل یک گوشه کوچک وجداگانه این کشور مي گردد، یک محیط کاملاً متمایز وتعجب آور که قویاً توسط مالیه دهنده گان امریکا یي کمک شده است.

دختران و پسران جوان با هم آزادانه و یکجا گشت و گذار مي کنند که بطور کلي در مغایرت با نورمهای اجتماعي این کشور قرار دارد، دختران بدون حجاب و چادر گشت و گذار مي کنند ، چیزیکه در دیگر نقاط کشور غیر معمول شمرده مي شود . در داخل صنوف استادان امریکایي مباحثات زنده را با استفاده از تکنالوژی مدرن میان محصلین داغتر میسازند. در بسا جاها دیده میشود که ایـن پوهنتـون نمونـه ای از کشـوری اسـت کـه امریکـا چنـدین دهـه قبـل پـلان انکشاف آنرا ترسیم نموده بود. بعضي ها امید دارند که این آموزشگاه شاید به حیـث یـک اثـر و میـراث از دراز تـرین و پـر مصـرف تـرین جنـگ امریکـا در افغانستان بجا بماند. تـا حال و در هنگامیکـه نیروهـای امریکا یـي بـرای سال 2014 و خروج از افغانستان آماده گي مي گیرنـد، در مورد آینده ایـن مرکز آموزشي نگراني های وجود دارند که شاید ایـن آموزشگاه نتوانـد آغوشي بـرای رشد استعدادها باشد.

ادامه کمکهای مالي متداوم با این پوهنتون چندان واضح نیست، و اکثـر محصـلین شـهادت نامـه را از دیـد یـک تکـت بـرای رفـتن بـه کشـورهای خـارج مشاهده مي کنند.

سید منصور افضلي معاون اتحادیه محصلان این پوهنتون که برنامه چهارساله تحصیلي اش را برای اینکه بتواند قبل از 2014 فارغ شود در سه سال تمام کرده ، مي گوید" شاید که کشور بسوی یک جنگ داخلي دیگری برود".

او مي گوید که اکثریت محصلان پلان دارند که کشور را ترک گویند و به خارج بروند و لي به قول وی تعدادی کمي اند که باور دارنـد بـا بـاقي مانـدن شان دراین کشور پیشرفت خواهند کرد.

مانند همه پدیده های دیگر غربي که در افغانستان نـا تمام و نـیم کلـه ماندند، پوهنتون امریکای افغانستان نیز همانطور ناتمام میماند، عده ایکه اکثرا با توجه به کمکهای خارجي به یک آینده مجهول مي نگرند ، سوالهای مختلفي را در مقابل خود ایستاده مي بینند از آن جمله اینکه این پوهنتون پس از خروج نیروهای امریکای در سال آینده تا چه وقتي دوام خواهد کرد؟

خانم" لسلي سچیوتزدر "یکي از کسانیکه برای تمویـل ایـن پوهنتـون در واشنگتن تلاش مي کند، مي گویـدبا اینکه کارهایکه در ایـن پوهنتـون شـده کامل نیست، اما نمي شودآن را نادیده گرفت. او مي گوید بسیاری از فـارغین ایـن پوهنتـون در ادارات دولتـي، وزارتخانـه هـا و سـکتور خصوصـي بـرای کـار جذب شده اند.

این خانم امریکایي مي افزاید که بودن این فارغین در داخل کشور بسیار مهم است چون به قول وی آنها رهبرانـي خواهند بود، و شما در بین آنها فکر و امید یک حکومت شفاف را دیده مي توانیدو اینها کساني هستند که مي توانند این کار را انجام دهند.

در ایـن روزهـا محصـلین در پوهنتـون امریکـایي افغانسـتان بـا نگرانـي در مورد ختم 2014 و استعفاها صحبت مي کنند.

مبارکه سحر فطرت یکتن از محصلین اناث که به سکالرشیپ وزارت خارجه امریکـا تحصـیل مـي کنـد مـي گویـد: " همگـي از ایـن هـراس دارنـد". او اضافه مي کند" وقتي با مردم صحبت مي کنم، هیچ یکي به آینده خوش بین نیست".

امریکایي ها مي گویند که حالا افغانها در رهبری قـرار دارنـد ، سـخني کـه بر سر زبانها است و بدون شک نشانه یي از انتهای تعهدات پنداشته مي شود، محصلین که امیدهای خویش را به پروژه های امریکایي بسـته انـد تـلاش دارنـد بفهمند که بالاخره آینده آنان چطور خواهد شد. به خصوص، محصلین اناث زیاد علاقه دارند که تحصیلات باقي مانده خویشرا در بیـرون از کشـور ادامـه دهنـد.

# د اتل شهید عبدالمتین

## ژوند ته لنډه کتنه

شهید الحاج عبدالمتین (رحمه الله) دالحاج عبدالجمیل زوی دکریم خان لمسی دکنړ ولایت دمانوګي ولسوالی دګړنګل دکلي اوسیدونکی چې په ۱۳۴۷ هـ ش کال په متدینه اوغیرتمنه کورنۍ کې زیږیدلی ، شهید (رح) کله نه چې دماشوم توب حالاتو کښې ؤ په ټولو همزولوکې ډیر زیرک ، شجاع ، اوصابر ښکاریده کله چې شپږو کالو ته ورسیده دګړنګل په ابتدائیه ښوونځي کې داخله واخسته او تر دریم ټولګي زده کړه وکړه ،روسانو چې په افغانستان یرغل وکړ نوموړی ماشوم وؤاو ده شهید والد الحاج عبدالجمیل سره د نورو خپلوانو په جهاد کې پوره برخه واخسته ، کله چې روسی عسکرو دکنړ ولایت دګړنګل دری ته ورسیده چې هغه وخت په ښامار دره شهرت لاره پدغه دره نوم ځای کې خارجیانو اودهغوی ګوډاګیانو سره پوره مقاومت وشو دمجاهدینو قربانۍ په نتیجه کې الله جل جلاله دغه متکبر کافر او دهغوي غلامانو ته شکست ورکړه او ډیر زیات غنایم یې ترلاسه شو او زیات مجاهدین مسلح شو ، همدارنګه د پیچ دری د نوړلی په سیمه کې دشورویانو سره لاس په لاس دګړنګل مجاهدینو لخوا مقابله وشوه چې هلته هم مجاهدینو ته زیات غنایم په لاس ورغلل.

په دي ټولو جنګونو کې دشهید(رح) خپلوانو او مشرانو شرکت لاره دپښتو متل دی چې (دباز د ځالی ځخه بازان الوزی) همدغه دجهاد جذبه کشرانو کې هم پیدا وه تردي چې

په کال ۲۰۰۱ م دافغانستان په پاکه خاوره د امریکایانو اودهغوي دغلامانو لخوا بریدوشو او دافغانستان خاوره اشغال کړه.

**دجهاد جذبه:**

کله نه چې په افغانستان کښې د اسلامي امارت قیام وشو شهید(رح) په ډیر اخلاص سره امارت سره ودرید او بیعت وکړه او هم خپلو ملګرو ته د بیعت دعوت ورکاوه آن تر دي چې دګړنګل اومانوګی ولسوالیو او دروزیات شمیر مجاهدین د شهید(رح) په دعوت اسلامي امارت سره یوځای شول او زیات مجاهدین دشهید(رح) په قیادت کې دیرغلګرو په مقابل جنګیدل

څوکاله او په مسلسل ډول امریکایانو د الحاج شهید(رح) تصویر، او د شیخ عبد الرحیم حفظه الله او الحاج ګلامیر عکسونه توزیع شول او د پریمانه انعاماتو اوډالرو په تبلیغ به دمانوګی ولسوالی په ایف ایم راډیو کې شپه ورځ یرغلګرو اعلانونه کول ،ترڅو دهغو په اړه څوک ورته جاسوسي وکړي خو د شهید(رح) دجهاد په امورو او جذبه کې نه دا چې کوم هیڅ فرق رانغی اونه چا دومره جرات لاره چې دا سلام دغه باتور کشف او دښمن ته یې وروښیي ، بلکې نوریې هم الله تعالی په جهاد او عمل کې برکتونه واچول !

## اخلاق:

شهید(رح) دنیکو اخلاقو خاوندؤ ده په خپل ژوند کې چاسره زیاتی ،ظلم نه و کړی زیات صابر دبرداشت خاوندؤ، دمجاهدینو سره زیات نرم او دکافرو سره ډیر سخت وؤ، په کوم مجلس یا شوری کې به چې شهید(رح) ناست ؤ ډیر خاموش با ادب او کله به یې چې کومه رایه او مشوره ورکړه دفوائدو ډکه به ډکه وه.

دخپل ژوند په اوږدو کې دا چا نده ثابته کړي چې دی دشریعت څخه خلاف خبره کړي وی او یا چا ته پریشانی ورکړي وی، شهید(رح) دمیانه قد، ښکلی سپین صورت خاوند وو، خاکسار،متقی بردبار او دنیکی روی خاوند ؤ، په ټولو جهادی چارو کې له ځانه دلوړو مشرانو اطاعت او فرمانبرداری کوله شجاعت او میړانه ئي ځانګړي صفات ؤ،میلمه دوست او سخي انسان وؤ. دملګرو مینځ کې محبوبیت ډیرزیات وؤ، دتهجد لمونځ اودجماعت لمونځ پابندؤ ،هیڅکله هم بی فائدي خبره نه کوله، په عربو او عجمو کښې زیات شهرت لره دشهید په تندي کښې هروقت خوشحالی ځلیده.

## دشهید(رح) بی ساري قرباني:

کله نه چې دافغانستان په خاوره دامریکایانو اودهغوي متحدینو لخوا یرغل وشو او دافغانستان ټولو ولایاتو ته ورسیده او هم په ولسوالیو کې میشت شو دکنړ ولایت مانوګی ولسوالی کې هم یو مضبوط بیز جوړ شوی وؤ، او ټولو عوامو او خاصو کې دا خبره خوره چې دخارجی قواوو سره داسې آلات او اسباب شته چې څوک تری نشی بچ کیدي لیکن ددین پتنګانو پداسې بې ځایه تبلیغاتو هیڅ باور ونکړه او په ولسوالی د برید قوی پروګرام شروع شو چې د مختلفو اطرافو نه دجنګ او برید تشکیلات اوشو پدي برید کې زیات فدایان،اوسرتیرو مجاهدینو شرکت درلوده ددغه تشکیل مشر او مسؤل شهید الحاج عبد المتین (رحمه الله) کاوه تر دي چې پدغه برید ډیر زیات تاوان دښمن ته ورسیده اوله عبرت ډک تاریخي درس یې ورکړ او یوتن تکړه مخلص شجاع مجاهد الحاج محمد شیر(رح) دشهادت جام نوش کړ

دشهید (رح) شهادت

## شهادت:

اتل شهید دجمعې په ورځ د ۹ بجو او ۳۰ دقیقو په شاوخواکې د ۱۴۳۴ هـ ق دربیع الاول میاشت کې د دښمن دهوائی برید له امله سره له یوبل ملګري دشهادت جام نوش کړ ، انالله و انا الیه راجعون.

دشهید جسد دکنړ ولایت دمانوګی ولسوالی دکړنګل دري په خپله پلرنی هدیرکښې دخپلو ملګرو او شهیدانو ورونو ترڅنګ دمجاهدینو په لاس خاوروته وسپار شو. یاده دې وي چې شهید په نورو خدمتونو سربیره ، داسلامي امارت په لیکو کې دمانوګی ولسوال هم وو.

الله جل جلاله ټولو شهداو ته جنت الفردوس نصیب کړي او الله جل جلاله د دوی دوینو په برکت په افغانستان کښې ژر تر ژره یو واقعی اسلامي نظام راولی:

آمین روح دی ښاد او یاد دی تل وي.



# د امریکایي پوځي اډو انتقامي اغېز

تسل

په ټولنیز ژوندانه کې دا معمول دی چې که کوم بېوزله باندې ظالم وربرابر شي نو د انساني مرستې نېږدې تمه یې په کلي کې د پیاوړې کورنۍ لمن نیول وي، خو په سیاسي اړخ کې بیا دا رنګ فکر لرل یوه ستره اشتباه او ځان تېرویستنه ځکه ده چې د سیاست په ماهیت کې د کرکې او انتقام اخیستنې تخم کرل شوی دی.

د ۲۰ پېړۍ له نیمایي راپه دېخوا د نړۍ ګڼ شمېر اسلامي هېوادونه د غربي واکمنو په څنګ و څټ کې د خپلې بقا زغرې پلټي، کوېټ د عراق پروړاندې جګړه کې د امریکا لمن ته پرېوت، سعودي عربستان د ایران له وېرې خپل هېواد کې د سرو کفارو شتون ته لبیک وویلې، پاکستان د هند او شوروي له وېرې واشنګټن نه د نجات غوښتنه وکړه، قطر او نور یې هم هماسې دروا خله، خو دا ټول بدبخته چې له کومې ورځې دغه ناولي غربي سیاست په پښو کې پرېوتي ترنن ورځې یې نه په کورني او نه بهرني سیاست کې خودمختاري احساس کړې ده او ځیني خو یې لا په کې داسې هم دي چې ورځ تر بلې یې حالت د زوال پرلور پرېووځي.

امریکا دامهال د نړۍ په ۳۹ هېوادونو کې سترې اډې، ۱۴۰ هېوادونو کې نظامي ستر تمځایونه، له ۷۰۰ تر ۸۰۰ پورې ځمکنۍ، هوایي، سمندري او جاسوسي مرکزونه په ۱۳۷ هېوادونو کې ۷۳۷ کوچنۍ هډې لري، چې یوازې ۷۸ یې په جنوبي کوریا، ۲۷۰ یې په المان، ۱۲۴ ژاپن او ۸۳ په ایټالیا کې دي.

دغه راز تر ۳۰۰ زرو تنو امریکایي پوځیان چې ډېری یې په منځني ختیځ کې مېشت دي د اسلامي نړۍ په تېره بیا د عربي هېوادونو د مهار کولو په نیت مېشت کړي چې یوازې تر ۲۰۰ زره تنو یې قطر، کویټ، سعودي عربستان، متحده عربي امارات، عمان، بحرین او عراق کې پراته دي.

یاد اسلامي هېوادونه چې د نړۍ تر ۵۰ سلنه غني زېرمې لري په اقتصادي او سیاسي لحاظ امریکا داسې لومو کې ایسار کړي چې د خپلې ازادۍ هېڅ څرک په کې نه شي لیدلای. سعودي عربستان ته نېږدې د سره سمندرګۍ او فارس خلیج څنډې هغه مهمې برخې دي چې لاهم د امریکایي ځواکونو تر ولکې لاندې دي، سعودي ولس او دولت به هېڅکله په اسانه ونه توانېدای شي چې په دغې سیمه کې خپل شته امکانات له ګواښ وژغورلی شي. دغه راز د غذایي او سوداګریزو توکو پر بندیز لګولو هم امریکا لاس بری ځکه ده چې عربستان ته تر ټولو اسانه لار (سمندر) هم ددوی تر واک لاندې دی. سعودي عربستان هر کال په میلیاردونو ډالر

# څو غوره وېناوي چې د انسان ژوند ښايسته کولی شي!

حضرت ابوبکر صدیق رض فرمايي: تر ایمان وروسته ستره پیرزوینه نیک خویه ښځه ده.

حضرت سلیمان ع د خوږې وینا په هکله وايي: خوږه وینا د قهر او غضب د سړولو او له منځه وړلو بریمنه لار ده.
مولانا جلال الدین رومي د انسان په اړه وايي: د انسان لوړول ګران خو را غورځول یې اسان دي.

علامه اقبال هم انسانیت محترم بولي او په احترام کې یې ډېرې ګټې نغښتې ګڼي دی وايي: د انساني ژوند پایښت د انسانانو په درناوي کې دی.

حضرت عیسی ع بیا فرمايي: بې عمله عالم د هغه ړانده په څیر دی چې څراغ یې په لاس کې وي، له رڼا څخه یې نور خلک ګټه اخلي او دی پخپله په تیاره کې پاته وي.

حضرت علي رض وايي: یتیم هغه دی چې علم نه لري او غریب هغه دی چې عقل نه لري.

ابن جوزي رح وايي: هغه علم چې په زړه کې خوا خوږي، ترحم اوصله رحمي پیدا نه کړي د هغه زده کړه بې ګټې ده.

حضرت عایشه صدیقه رضي الله عنها فرمايي: د څراغ له رڼا نه ګټه واخلئ، دې ته مه ګورئ چې څراغ د چا په لاس کې دی.

خوشال خان خټک د میړنو پلوی دی، دی بیا وايي: ناځوانه خلک په نسب ویاړي او میړونه په خپلو کارنامو ویاړي.

(فـریـد احـمـد(بهیر)

لګښت په خپلو پوځیانو کوي خو بیا هم د مېښتو امریکایي پوځیانو د مقابل وړتیا په کې نه لیدل کېږي او نه ترې دا تمه کېدای شي.

دغه راز دا نور نېږدې هېوادونه هم د ازادۍ سیالۍ له زوره غورځول شوي او د مړښت په مرۍ یې غربي منګولې خښې کړل شوې بربښي.

ایران چې په سیمه کې د اسرائیلو پروړاندې یو ښکاره ګواښ ګڼل کېږي امریکا یې شاوخوا ټولو ګاونډیو هېوادونو کې خپلې نظامي هډې خوندي کړې: افغانستان، پاکستان، ترکیه، قرقېزستان، ګرجستان او ارمنستان کې امریکا خپلې ځاګړې هډې لري.

سپینه ماڼۍ د نړۍ هر هېواد ته خپل پوځیان د خپلو هغو ګټو او موخو د خوندي کولو په نیت لېږي چې له مقابل لوریو د کوم خطر او یا هم د خپلو ګټو د مخنیوي درک احساس کړي او په همدې پلان یې کړي کار تقریباً نور مخ په پوره کېدو دی، اسلامي نړۍ یې د ولکې لاندې کولو وروستۍ پړاو ته نېږدې کړې، تېل او نورو موادو ته یې لاس پوره لاس رسی پیدا کړی او د مسلمه امت د خپلمنځي دښمنیو اخته کونه یې پیل کړې ده.

امریکا غواړي له یو اړخه اسلامي نړۍ په داسې خپل منځي مرګونو شخړو اخته کړي چې د وخت په تېرېدو یې خپل ملتونه هم د ځان خلاصي په درک پوی نه شي او سو که سو که په کې ټوله کفري نړۍ له مسلمه امت څخه د خپل غرضي د انتقام وینې وڅښي او له بل هغه د پیاوړو زېرمو مهار کول په خپل واک کې ولري. واشنګټن په اسیا سربېره اروپا او افریقا سره هم فرېبانه ملګرتیا کوي او غواړي چې په دې سره خپل ځان ته د نړۍ پر سیاسي محور د راج چلولو زمینه برابره کړي.



# دکاندیدانو غومبر

لطیف عزم

یوه عجیب او غریب حالت په افغانستان راغلی ، له یوه لوري امریکایان کلک دیته ولاړ دي چې امنیتي تړون ورسره لاسلیک شي ، کنه ګاونډیان به موخام وخوري ، نظام به مو فلج شي ، معاشونه به دربانديودریږي او اردو به مو وپاشل شي ، له بل لوري یې بیا دبې واکه اوکاواکه ( ولسمشری ) دټاکنو لپاره یې دداسې کاندیدانو غومبر اوغوبل جوړ کړی چې زیاترویې دافغان ولس او اسلامي شعایرو په حق کې دومره جرمونه او جنایتونه سرته رسولي چې چاره یې صرف یو اسلامي او حقپال عدالت کولای شي ؛ خو امریکایانو همدغو جنایتکارانو ته زمینه مساعده کړي چې یوځل بیا دواک ګدی ته ورسیږي او داخل دواحد افغانستان په مری پښه کیږدي او تجزیه یې کړي .

جنرال دوستم په دې سربیره چې په افغان دښمنی اوله اسلام سره په غداری کې دارتداد درجې ته رسیدلی ، ځکه یو ځل یې الحاد ومانه او دکمونیزم اجیر شو ، بیایې دخپل منځي جګړو په ترڅ کې افغاني عفت او عصمت لوټ کړ او په زرهاوو وګړي یې له تیغه تیرکړل ، بیا یې دادی دصلیب غیږې ته پناه وروړه او افغانستان یې پرې وپلوره ؛ دغه معلوم الحاله غدار په وچې یوې عذرخواهی اوبښنې غوښتلو سره دتیرو ۳ نیمو لسیزو په خپلو ټولو خیانتونو پرده اچول غواړي ، خو هغه هم په دې شرط چې دولسمشری ړومبی معاونیت به دهغه په پچه رسیږي !!

سیاف ، ډبل عبدالله او دانسانانو په سرونو دمیخونو ټکوهلو نجار ( محقق ) یې بیا دومره سپین سترګي جهاد فروشان دي چې دقدرت او چوکی لپاره یې اول کابل خښته خښته اولوټه لوټه کړ اوپه بل مخ یې نسکورواچاوا او د۸۰ زرو مظلومو افغانانو ککرۍ یې خاوري ایرې کړې ، دپاټک سالاری اودخپل منځي جګړو تخم یې په ټول افغانستان کې وکاره اوپه هغه سربیره یې افغانستان دنړی په ۴۹ کفري او اسلام دښمنه هیوادونو وداړه ؛ دغه قاتلین او چپاول ګر نه داچې په خپلو ګمراهیو بیزاره ندي اوس یې دادی ان دولسمشرۍ لپاره پیاز په ګنډه وهلې اوځانونه یې کاندید کړی ، له خدای نه خوحیا نه ورځي ، وجدان اوضمیر یې لاله وړاندې پلورلی په دې خبره کې هم سوچ نه وهي چې څومره نور به ژوندي وي اوپه کومو سترګو به دغه مظلوم ولس ته دریږي او درایې اخیستلو مطالبه به ورنه کوي !!

همداډول یې اشرف غني احمدزی وګوره چې ټول عمر یې دامریکا په نوکری او تابعیت کې تیرشو له یوه کوره دوه وروڼه دولسمشرۍ لپاره کاندید شوی ؛ دافسوس ځای خودادی چې دغه امریکایي ډوله خیرې له خپلې ټولې غلامی سره سره بیاهم دافغانستان دیوه لوی اوباعفته غیرتمن قوم ( احمدزي ) لقب اونسبت ځان پورې تړي !!

له دوی څخه پوښتو چې تاسې خپل دغه قوم ته کړي څه دي اوپه کوم غم اودرد کې ورسره شریک شوي یاست ، ټول عمر مو دامریکا په هوټلونو او پارکونو کې په شرابو او نیشو کې تیرکړ ، په هغومو هم زړه سوړ او یخ نشو دیرغل لپاره مو شپه ورځ جعلي حقوقي مجوزې نشر او تبلیغ کړي چې امریکایان حق په جانب دي چې افغانستان اشغال اودافغاني اقدارو په ځای هلته لغړ اوبربنډ امریکایي تهذیب ! پنجي خښې کړي !!

زه لــه احمــدزیو برادرانــو څخــه پوښــتنه کــوم چــې لطفاتاسې دتیرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې خپله هغه یوه مرکه او ویډو وښیي چې دامریکایانو په مظالمو اووحشتونو موچیرته انتقاد کړي وي او یا دکومې غمځپلې کورنی په درداومصیبت کې چې ستاسې امریکایي بادارانو خوارو او مظلومو افغانانو ته وراړولي وي ځان شریک کړي وي ؛ اوس په کومو سترګو له دغه ولس څخه درایي اوملاتړ هیله او غوښتنه لرئ ، ستا غیرتمن احمدزی قوم خو په سلو کې ۹۹ فیصده دامریکایي وحشت اوناترسه دیمکراسی په مقابل کې لکه غرولاړدی ، دمجاهدینو هرډول پالنه اوساتنه کوي او دخولی مړۍ ورسره نیمایي کوي ، که داوایي چې زما قوم ډیر سواد او عصري پوهه نلري او العیاذباالله دناپوهی له وجې دامریکایانو مخالفت کوي ، که فرضا دادرسره یوځو شیبې ومنو ، نو تاسې پوهانو ددغه قوم لپاره دتیرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې کوم پوهنتون اولیسه جوړه کړې ، دهغو جونګړو او کیګدیو ته ورغلي یاست چې علمي او اقتصادي وضعه مو څنګه ده او له امریکایانو څومره په تکلیف او کړاو کې یي !!؟

همدارنګه دانورکاندیدان هم په همدې ډول دروشمیری، چې ړومبی یې خپل ولسونه اوسیمي ټکولې ، شتمنی او ځمکي یې تري غصب کړي او دامریکایانو دجاسوسی ټاپه یې په ټټرلګولې او بیایي لارپیداکړي ترڅو دراتلونکو نمایشي ټاکنو لپاره ځان کاندید کړي.

داخبره هم روښانه ده چې امریکایانو به ددغه غومبرله ډلې څخه یو دانه غومبروال لاله وړاندې غوره کړي وي او هغه به له امریکایی سفارت څخه دسی ای اې دیوه ایجنت په توګه خپل پوخ سند ترلاسه کړی وي ؛ خو امریکایانو دغه لوی غومبر ته لدې امله موقع ورکړې او په میدان کې یې دانې ورته اچولي ترڅو دهره یو له خولې په صراحت واوري او افغان ولس ته داذهنیت تبلیغ کړي چې وګوری دولسمشری هریو کاندیدان څومره په امریکایي حضورټینګارکوي او دامریکایی عسکرولپاره قضایي مصؤنیت اوامنیتي تړون دافغانانو په ګټه او مصحلت بولي

## هل تعلم ؟

أول من صنع الصابون . . . . . . . سيدنا سليمان عليه السلام

أول من وضع النقط علي الحروف . . . . . . . . الأسود الدوؤلي

أول من قال أما بعد . . . . . . . سيدنا داوود عليه السلام

أول من جمع القرآن . . . . . سيدنا ابو بكر الصديق بعد معركة اليمامة رضي الله عنه

أول ما خلق الله . . . . . . . . القلم

أول من وضع علم الكيمياء . . . . جابر بن حيان

أول من وضع علم الجبر . . . . . الخوارزمي

أول شهيدة في الإسلام . . . . سمية أم عمار أبن ياسر

أول أبن آدم . . . . . قابيل

أول من تكلم العربيه . . . . سيدنا إسماعيل عليه السلام

أول من سمي سيد الشهداء . . . . حمزة بن عبد المطلب

أول مؤذن في الإسلام . . . . . بلال الحبشي

أول من ولد في الكعبه . . . . علي بن أبي طالب رضي الله عنه

أول من وضع علم النحو . . . . الأسود الدؤلي

أول من بني مسجداً في الإسلام . . . . عمار بن ياسر بأمر من الرسول صلي الله عليه وسلم

أول مسجد وضع في الأرض . . . . . المسجد الحرام

أول من أسس علم الأخلاق . . . . . .علي بن أبي طالب رضي الله عنه

أول آية نزلت في القتال . . . . أذّن للذين يقاتلون

أول من سمي أبو الشهداء . . . . الحسين بن علي

أول طبيب عربي . . . . . . . أبو بكر الرازي

أول إمام أبوه إمام وجده إمام . . . . الحسن والحسين

أول من ركب الخيل . . . . . إسماعيل عليه السلام

أول من صبغ بالسواد . . . . . . . فرعون

أول من خلع نعليه عند دخوله الكعبه . . . . الوليد بن المغيره

أول من كسي الكعبه المشرفه . . . . الملک تّبع ثم كساها الرسول صلي الله عليه و سلم

# ناټو د شړېدو په درشل کې

شاهد حقاني



له هغې وروسته چې د امریکا د استخباراتي سازمان (CIA) یوه قراردادي مامور(اېډورډ سنوډن) دنړیوالو رسنیو له لارې د امریکا جاسوسي پلانونه رسوا کړل، نو دمهاله د ناټو پکت ترسیورې لاندې راټول لویدیځوال د امریکا په بدو ارادو وپسخیدل او هره یوه یې په خپل نوبت سره ګوتڅنډنه وکړه، چې که امریکا داسې کارونه کوي نو د دوئ په اصطلاح ! د دهشتګردۍ پر ضد جنګ ته به زیان واړوي ،دا د دې تمهیدي نښه ده چې نور به ناټو تړون شړېږي او د نړۍ مسلمانان به یې له شره خلاصیږي.

د ناټو د شمالي اتلانتیک تړون په ۱۹۴۹ کال کې لومړی د بلجیم د بهرنیو چارو د وزیر کارل هیندري سپاک له خوا لاسلیک شو. تر هغه وروسته د ډنمارک، فرانسې، بریتانیا ایسلند، ایټالیا، کاناډا، لوکزمبورګ، هالند، ناروې، پرتګال او د امریکا د متحده ایالاتو د بهرنیو چارو وزیرانو ددغه سازمان اساس نامه لاسلیک کړه. ددغه سازمان اصلي هدف سوله او ازادي دهد ،خو له بده مرغه چې د(وارسا ) له انحلال وروسته یې د سولې او آزادۍ لاره پرېښوده او د خپلو اکیو هیوادونو پر اشغال یې لاس پورې کړ، چې ژوندۍ بیلګه یې افغانستان ،عراق او.........دي. په ۱۹۵۷ کال کې په پاریس کې د ناټو لومړۍ غونډه:

ناټو تر خپل تاسیس اته کاله وروسته د ختیځ بلاک له ننګوني سره مخامخ شو .تر دې دوه کاله مخکې د( وارسا ) پکت تاسیس شو. دا هغه وخت وو، چې شوروي اتحاد د سپوتنیک په نامه خپل لومړی توغندی فضا ته ولیږه. او د امریکا متحده ایالات په اټومي سیالۍ کې پاتې راغلل.

دې وروستیو کې اروپایان او نړیوال د امریکا دیوه بل هیښونکي او حیرانوونکي کار شاهدان دي او په وجه یې لویدیځوال دډېر کسر شان سره مخ دي هغه داسې چې:

د امریکا حکومت له لورې د څار پروګرام افشا کونکې، د سي آی ای پخواني کارکوونکې (۲۹ )کلن اېډورډ سنوډن

برتانوی ورځپاڼې (ګارډین ) ته ویلي و، چې د امریکا حکومت په پراخه کچه د انټرنېټ او ټیلیفوني اړیکو څارنه کوي او په میلونونه ټیلفونونه یې له ځانه ثبت کړي دي .

د یوې فرانسوۍ ورځپاڼې د خبر پر اساس فقط د ۲۰۱۲ د دیسمبر په میاشت کې امریکایي جاسوسي ادارې له اویا ملیونه (۷۰۰۰۰۰۰ )زیات ټیلفوني تماسونه اوریدلي دي.

د فرانسې حکومت د امریکایي استخباراتو لخوا د فرانسې ټیلفوني تماسونو ته په پټه غوږ نیول په کلکه

غندلي دي او پر همدې تړاو یې په خپل هېواد کې د امریکا سفیر احضار کړی و.

که څه هم امریکا او فرانسه ښې دوستانه اړیکې لري ،خو دهمدې خبر په خپرېدو سره پاریس قهرېدلی او د پوښتنو ګروېږنو لپاره یې د امریکا سفیر ور احضار کړی. ویل کېږي، په دغو تماسونو کې د شکمنو کسانو او سیاسي څېرو تر څنګ د تجارانو او عامو خلکو خبرې اترې هم شاملې دي.

دسرچینې د معلوماتو له مخې، د امریکا استخباراتي ادارې په هالنډ کې هم نژدې د دوو ملیونو کسانو ته په پټه غوږ نیولی دی

دې مسئلې اروپایان له خورا زیات حساسیت سره مخامخ کړي او دپوره بې باورۍ ښکار شوي دي.

له دې څخه مخکې د سي ای اې پخواني مرستیال تخنیکر سنوډن ویلي و، د پرزم نومي پروګرام افشا کولو پرېکړه یې د ټولې نړۍ د خلکو ازادۍ ژغورنې لپاره کړې.

د نوموړي په وینا له استبداد نه د آزادو خلکو ژغورل بې مسوولیت دی.

(ایډورډ) د امریکا د ملي امنیت د ادارې له خوا په پراخه کچه د ټیلیفون او انټرنیټ څارنې د پروګرام په باب د برتانیا ګارډین ورځپاڼې ته ویلي و، او یادې ورځپاڼې د هغه په غوښتنه د نوموړي نوم افشا کړ.

ایډورډ برتانوي ورځپاڼې ته ویلي و، زه نه غواړم داسې ټولنه کې ژوند وکړم، چې په کې دغه ډول کارونه کېږي، زه نه غواړم داسې نړۍ کې واوسېږم، چې زما هر قول او فعل په کې ثبت کېږي.

د یادونې ده، برتانوي ورځپاڼې ګارډین یوه رپوټ کې ویلي و، چې ګواکې د امریکا ملي څارګره اداره، په پراخه کچه د انټرنیټ او ټیلیفون څارنه کوي.

د ورځپاڼې په رپوټ کې ویل شوي وو، د څارګرې ادارې د دې پروګرام له مخې د خلکو شخصي ویډیوګانې، انځورونه او برېښنالیکونه کنټل کېږي، چې یو شمېر خاص خلک په نظر کې وساتل شي.

که څه هم له دې نه یوه ورځ مخکې د امریکایي استخباراتو مشر جیمز کلیپر هغه رپوټونه رد کړل، چې ګواکې امریکایي جاسوسانو د ۳۰ ورځو په موده کې د فرانسویانو ۷۰ میلیونه ټیلیفوني اړیکې ثبت کړي وو.

هغه په دې اړه د فرانسوي ورځپاڼې "لوموند" رپوټ رد کړ او په وینا یې "دغه رپوټ کې بې لارې کوونکي معلومات وړاندې شوي دي".

خو دې موضوع په لویدیځ کې یوه واویلا جوړه کړې اویو یو اروپایي مشر پر امریکا نیوکې کوي او ورڅخه سپیناوی غواړي ،ددې څخه مخکې فرانسې هم د احتجاج په توګه دامریکا سفیر احضار کړی و.

دنړیوال جنګ دوارڅینوتر منځ بیا بې باوري زیاته شوي او دجرمني صدراعظمې امریکاته داسې ګوتڅنډنه وکړه چې:

## د امریکا جاسوسي 'د ترهګرۍ ضد جګړه زیانمنوي'

میرکل له امریکا وغوښتل، چې د امریکا د محرمانه عملیاتو په باب د خپرو شویو رپوټونو په اړه توضیحات ورکړي.

د جرمني صدر اعظمې انګیلا میرکل وایي، جرمني او فرانسه د جاسوسۍ په باب د هغو انکشافاتو رابرسېره کېدو له کبله، چې ګواکې ټیلیفوني اړیکې یې څارل شوي، د امریکا له متحده ایالتونو سره د خبرو لړۍ پیلوي.

د هغې په وینا، له هغه وروسته، چې د بدګومانۍ تخم کرل شوی استخباراتي همکاري رامنځ ته کول نوره ستونزمنه کېږي.

خو هغې ټينګار وکړ چې د مخکې تګ لپاره يوه اساس پسې ګرځي، خو د سپينې ماڼۍ يوه ويانـد جې کـارني پـه وينـا دغـو انکشـافاتو د امريکـا او اروپـايي متحدينو اړيکي خړپړ کړي دي.

جرمنـي د امريکـا سـفير د لانـورو توضـيحاتو لپـاره ورغوښتی دی.

انګيلام ميرکل د اروپـايي اتحـاديې د لـومړۍ ورځـې پای کې وويل چې رامنځ ته شوې بې باوري له امريکا سره د معلوماتو شريکولو په لړ کې همکاري ستونزمه کړې ده.

دا لومړی ځل دی، چې اروپايي اتحاديه برسلز کې د پنجشنبې پر ورځ پر دا ډول موضوع غږېږي.

د ميرکل په وينا ، جرمني او فرانسه لـه امريکـا سره د استخباراتي معلوماتو شريکولو د همکاريو په لړ کې پر نوې تګلاره غور کوي.

پـر همـدې مهـال، واشـنګټن پوسـت ورځپـاڼې د يـوه جګپوړي امريکايي چارواکي لـه خولې ويلي چې امريکا لو يــد يځو اســتخباراتي سرويســونو تــه د دوه اړخيــزه همکاريو د افشا کولو خبرداری ورکړی.

د دغې ورځپاڼې په وينا ، هغه معلومـات چې (اډوارډ سنوډن) افشا کړي، کولی شي د هغـو ببلابېلو هېوادونـو استخباراتي همکارۍ په ډاګه کړي، چې ظاهراً ځينې يې له امريکا سره همکاري نه لري.

تردې مخکې د فرانسې ولسمشر فرانسوا اولاند هم د خپـل هېـواد د وګـړو د ګرځنـده تيليفونـونـو اوربـدل شـويو مکالمو د خپرو شويو رپوټونو په اړه اند ېښنه وښووله.

پـه دې دوه اړخيـزه همکـارۍ کې د روسـيې، ايـران او چين په څېر هېوادونو جاسوسي هم شامله ده.

ميرکل له امريکا وغوښتل، چې د امريکا د محرمانـه عملياتو په باب د خپرو شويو رپوټونو پـه اړه توضـيحات ورکړي.

هغـې پـه تېره چارشنبې د امريکـا لـه ولسمشـر بـارک اوباما سره پر تيليفون د دې موضوع په اړه خپلې اند ېښنې شريکې کړې.

د فرانسې ولسمشر فرانسوا اولاند هم د خپل هېواد د وګړو د ګرځنده تيليفونونو اوربدل شويو مکالمو د خپرو شويو رپوټونو په اړه اند ېښنه وښووله.

بل خوا ، ايټالوي استخباراتو د خپل هېواد د وګړو په اړه د تيليفوني او انټرنېټي اړيکو اوربدو پـه بـاب امريکا او برتانيا پړه بللې دي

د جرمني د بهرنيو چارو وزارت پـه دغـه هېـواد کې د امريکا سفير د هغو ادعاوو د سپيناوي پـه ا ړه احضـاروي چې وايـي د جرمنـي د چانسـلرې انګـلا مېرکـل ټيليفـوني مکالمې د امريکايي استخباراتي ادارو له خوا څارل شوي دي.

وروستي رپوټونه وايې چې (اېډورډ سنوډن) بې درکه دی خورسنيو خبر ورکړ ، چې (اېډورډ سنوډن)لومړی دچين هانکانګ او بيـا روسـيې تـه تللـی ،نومـوړی ځـان بـې هيـواده شـخص بـولي او امريکـايي محکمـه کې دبغـاوت ،جاسوسـي او حکـومتي رازونوپـه افشاکولوتورن وپيژندل شو ،چې له امله يې لس کاله سزا کتلای شي.

پـه لومړي ځل دناټو دمتحدينو تر منځ پـه دومـره لويـه پيمانه بدګماني اوناندريزي څرګندونې ، پـه نـاټو ترون کې سرې اشاري بلې کړي ،چې ګوندې دناټو ترون چې لومړی د سـاړه پـر وخـت د(وارسـا )پـه مقابـل کې جـوړ او اوس داسلامي امت پـه وړاندې جګړه کوي ،وشړېږېږي او له شره به يې دنړۍ ټول يو نيم ميليارد مسلمانان خلاص شي.

# دوه هغه اتلان

## چې د الله د رضا لپاره يې تنکي ځواني او لوړې زده کړې نذرانه کړې !

خليل ''عزيز''

ديرغلګرو او ددوی دغلامانو پـه مقابـل کې روان جهاد په دومره سپيڅلې جذبه اوپاکه ارزو په مخ درومي چې شاته يې پرته له الهي رضا اوصرف اخروي مکافاتو نورهيڅ هم نه ليدل کيږي.

له همدې امله دقرباني او سرښندنې دغې معرکې ته هغـه څوک رادانګي اودالهـي سپاهيانوصـفوف غښتلي کوي چې داخلاص ، تقوا ، اطاعت ، استقامت بيلګه او په ښـکاره او پټـه دالله اوامـرو اودينـي احکاموتـه مطيـع اوفرمانبر داره وي.

دغه جهاد په ربښتيا هم دحضرت خالدبن وليدرضی الله عنه په مينه او جذبه په مخ ځي ، دهغه دوينا په مصداق ( که يخه شپه وي ، واوري اوري اوهغـه له خپل لښکر سره ددښمن لارڅاري اودمقابلې په نيت ورتـه ولاړ وي ، داهغه ته داولې شپې واده ( ناوي ) له خلوت څخه غوره اوبهتره ده )

دصليبي اشغالګرو او ددوی داجيرانو پـه مقابـل کې په ګران هيواد افغانستان کې جهاد اومبارزه دخالدبن وليد پـه تعهـد اوجذبـه پـه مـخ درومي ، داسې تنکي ځوانـان خپلې بهترينې ککرې ځاروي چې مسترح ژوند اوپريمانـه سهولتونه لري ، چاته په کورونو کې دژوند داسې ملګرې دانتظارشپې ربړوي چې دواده يې يو کال اوڅومياشتې نه وي پوره شوي ، دچا صرف کوژده شوي وي اوڅوک بيا ديوه او دواولادونو پلارجوړشوي وي ، دژوند پـه همدغـه تـازه منـګ کـې داسلام اصيل شاه ځلميـان داسلام دسرلوړي اوپه هيوادکې ديوه سوچه الهي نظام دحاکميت پــه هيلـه دجهاداوسرښــندنې لار انتخــابوي ، خپــل مـورپلار، ميرمنـي ، کـوژدنې او خـوارږه اولادونـه الله تـه حواله کوي اودشهادت جام په سراړوي.

داهسې شعاري اونمايشي خبري ندي راځئ چې دوه تنـه هغـه شـهيد اتـلان دروښـيم چې پـه پورتـه يـادو ځانګړتيا ووپه څه ډول موصوف اوپوښلي وو.

دوی دواړو پـه دې سـربيره چـې خپلـې ښـيرازه اوخوشـرنګه ځـوانی يـې دالله درضـالپاره قربـاني کـړې ،ورسره يـې خپلـې لـوړې زدکـړې هـم پـه نيمـايي اويـاهم دفراغت په کال پريښودي.

### شهيدانجنير سيف الرحمن حامد :

نوموړی دلوګرولايت دپادخوابه شانه کلي دحاجي عبدالقيوم ځوی او دمرحوم ملا ابوبکر لمسی وو ، شهيد دافغانستان په سطحه له يوې منل شوي علمي اومتديني

کورنۍ سره تعلق لاره ، نیکونه یې لکه قاضي محمد او ملامحمود چې دواړه ورونه وو په خپل وخت هغه ستر شخصیتونه وو چې هم دانګریزانو په مقابل کې دجهاداو استقلال مشري کړې وه او هم یې په علمي ډګر کې په زرهاوو تنه زبده علمای کرام ،روزلي اولورلي وو

شهید سیف الرحمن ، په کال ۱۳۲۵ کې دې پاني دنیاته سترګي وغړولي ، ابتدایی دیني زدکړې یې دخپل جومات له ملاامام څخه ترلاسه اوپاتي زدکړې یې دپادخواب شانه په عالي لیسه کې ترسره کړي ، په ۱۳۸۸کال دکانکورپه ازموینه کې دننګرهار پوهنتون دښوونې او روزنې دفیزیک څانګې ته بریالی اوومنل شو

.

نوموړي چې په رښتیا دالله توره وه په دې سربیره چې درس ته به دخپلې کورنۍ په اصرار دوام ورکولو ، خو څانګړې مینه او غوره انتخاب یې جهاد او دالله په لار کې شهادت وو چې بالاخره د۱۳۹۲ چې دپوهنتون دفراغت کال یې هم وودزمري دمیاشتي په نیته د۲۷ کلونوپه عمر دصلیبي یرغلګرو دړرون دهوایي برید په نتیجه په ابدي خوب ویده اوځان یې په اسلام ټوټې ټوټې کړ ( اناالله وانااليه راجعون )

شهید انجنیر سیف الر حمن حامد ، په دې سربیره چې لوړې عصري زدکړې یې سرته رسولي ، دپام وړ دیني پوهي او مطالعي خاوند هم وو ،دجمعي دلمانځه سخت پابندوو ، ژبه به یې دالله په ذکر همیش لمده وه ، په سختي او اسانی دواړوکې به یې دامیربشپړاطاعت کولواوالله تعالی په نظامي امورو کې ښه مسلکي تجربه ورکړې وه

شهید سیف الرحمن حامد ،په داسې حال کې دجنت حوروته ځان ورسولوچې دلته یې خپله په انتظارناسته بې بې اوکوژدن دخپل پلارپه کور پریښوده. الله تعالی دې لوړې درجې وربرخه او ورسته پاتو ته دې په دنیااو اخرت کې بهترینې بدلې ورپه برخه کړي ، امین

## شهیدانجنیر صدیق الله صادق :

نوموړی هم دلوګرولایت دپادخواب شانه دکلي اوسیدونکي ، پلاریې محمدصادق او نیکه یې نورالحق نومیده اوله یوې متدیني اوعلم پروره کورنۍ سره ربط لاره

شهید صدیق الله په کال ۱۳۷۰ کې دې نړۍ ته سترګي پرانیستي ، ۵ کلن وو چې دخپل پلار له سیوري محروم شواویتیم وګرځید ،په ۷ کلنۍ کې یې موروفات شوه.

الله تعالی هغه ته عجیب ذکاوت او استعدادورکړی وو په سختوشرایطوکې یې خپلې زدکړې تر۱۲ ټولګي پورې دپادخواب په لیسه کې ترسره کړي ،په ۱۳۸۹کې دکانکورپه ازموینه کې دننګرهار دانجنیری پوهنځي ته ومنل شو.

شهیدچې په خپل بې ساري استعداد برسیره چې خپلو زدکړوته به یې دوام ورکاوه ، ډیروخت به یې دخپل کلي له مجاهدینوسره په جهادکې هم تیراوه ، دماین اېښودلو او جوړودپام وړ مهارت درلود، نیک اخلاق ، بردباري ، اطاعت اوتقوایي غوره خصلتونه وو ، که به مجاهدینو دکوم برید تصمیم لاره له پوهنتون څخه به یې په ډیره مینه اوخوشحالی ځان وررساوه اوهمیشه به یې داارزو ه چې که الله تعالی یو اسلامي نظام راولي او پاتي زدکړي دهغه په سیوري کې سرته ورسوي.

شهید انجنیرصدیق الله صادق په داسې حال کې دانجنیری ددریم صنف محصل وو ، د۱۳۹۲ کال دمیزان دمیاشتي په ۳۰ نیته دیرغلګروپه وړاندې دماین ښخولوپه چاودنه کې دشهادت لوړې مرتبې ورسید ، اناالله واناالیه راجعون. الله دې بهترین انعامات ورپه برخه ، یادیې همیشه او کارنامې یې ځلنده اوسه ، امین




# امریکایانو دافغانانو ۲۲ میلیارده ټلیفوني اړیکې اوریدلي !

په داسې حال کې چې دنړۍ له هرکونج اوکنار څخه په امریکایانو تور پوري کیږي چې تیلفوني خبري یې هغوی دجاسوسی په نیت اوریدلي اوبرښنایي لیکونونه یې لوستلي اوڅارلي دي ، ورمه ورځ داراپور هم مخې ته راغی چې امریکایی جاسوسانو دافغانانو په حق کې هم دغه لوی خیانت او جفا سرته رسولي اودهغوی یې په میلیاردو نو تماسونونه کشف اوغوږیې ورته نیولي.

دیاهو نیوز دراپور له مخې امریکا داروپا ، منځني ختیځ او اسیا تنها د۲۰۱۳ کال دجنوري په میاشت کې څه باندې ۱۲۵ میلیارده تیلفوني تماسونه څارلي اوغوږیې ورته ایښي ، چې له دغې شمیري څخه یواځې دافغانستان شاوخوا ۲۲ میلیارده تیلفوني اړیکي امریکایانو اوریدلي.

دهغو خپرو شوو اسنادو له مخې چې دکرایپتوم ، ویب پاڼې خپاره کړي راغلي چې دامریکا ځانګړي څارګري (NSA) ، شبکې له بل هرهیواد څخه زیات دافغانانو تیلفوني اړیکې اوبرښنایي پیغامونه ډیر کتلي او اوریدلي دي.

دامریکا دملي امنیت داژانس له لوري دنړۍ دهغوهیوادونو او دخلکو چې تیلفوني تماسونه یې اوریدل شوي په لاندې ډول دي.

افغانستان ۲۱ میلیارد او ۹۸ میلیون
عربستان اوه میلیارد او ۸۰۰ میلیون
اردن یو میلیارد او ۶۰۰ میلیون
مصر یو میلیارد او ۹۰۰ میلیون
عراق اوه میلیارد او ۸۰۰ میلیون
ایران یو میلیارد او ۷۳ میلیون
پاکستان ۱۲ میلیارد او ۷۶ میلیون
هند ۶ میلیارد او ۲۸ میلیون
آلمان ۸۰ ۳۶۱ میلیون
فرانسه ۷۰ میلیون او ۲۰۰ هزار
اسپانیا ۶۱ میلیون
ایتالیا ۴۶ میلیون
هالند یو میلیون او ۸۰۰ هزار

همدارنګه خپله دامریکا په داخل کې هم دخلکو داوریدل شوو تیلفونو شمیره ۳ میلیارد ته رسیدلي. په دغو خپرو شوو اسنادوکې ویل شوي چې پورته شمیرو کې تنها دولسي او عامو خلکو اړیکي ندي څارل شوي وي ، بلکې دنړۍ د۳۵ هیوادونو دولسمشرانو ، ړومبي وزیرانو او جګ پوړو چارواکو خبري اوبریښنایي پیغامونه هم کتل شوي او جاسوسی ترینه شوي.

دنړۍ په سطحه له افغانستان څخه په دومره کچه تیلفوني غلا او جاسوسي په ګوته کوي چې امریکایي استکبار زمونږ له ولس سره په څومره لویه کینه او حسد کې قرارلري چې دهر افغان تیلفوني تماس دوی په کلکه څارلي او اوریدلي دی ، همدارنګه په یوه میاشت کې تنها د۲۲




میلیارده افغاني تیلفوني اړیکو له څارلو څخه داخبره هم ښه ثابته شوله چې دکابل رژیم او نامنهاده تخنیکي مخابراتي سیستم یې څومره اجیر او غلام صفته ده چې په یوه میاشت کې په دومره لویه پیمانه غلا اوجاسوسي تري کیږي چې په ټوله نړۍ کې ساری نلري ؛ خو بیایې هم لاسپوڅي واکمن دځپلواکی ، جمهوریت ، منتخب پارلمان او موجود اساسي قانون شعارونه ورکوي.

اوس به داهم خبره هم معلومه شي چې دکابل واکمن ، پارلمان او په چوپړ کې ګمارل شوي میډیا دورستی امریکایي غداری او یرغل په وړاندې څه کوي او سره بیره په دغه امریکایي خیانت به بیاهم دوی افغانانو ته وایي چې امریکایي حضور په افغانستان کې ضرور دی ترڅو افغانان ددوی په اندله ترقی او هرډول مصؤنیت څخه برخمن وګرځي . لطیف ع )

## د اموي خلیفه (سلیمان بن عبدالملک) اومشهور تابعي (ابوحازم رحمه الله) ترمنځ خبرې

**سلیمان: وصیت راته وکړه!**

**ابوحازم: په څوټکیو کې وصیت درته کوم. هغه داچې : د خدای جل جلاله لویي ومنه . او(له دوه خبرو ) ځان وساته (لومړی دا) چې الله جل جلاله دې په داسې ځای کې ووینې چې هغه ترې ایسار کړی یې .**

**)دویم ) داچې په هغه ځای کې ناسوب نه شې په کوم چې امر یې کړی یې.**

**کله چې ابوحازم له دې ځایه ووت، سلیمان سل دیناره ورپسې ولېږل ، او داېې هم ورته ولیکل : دغه روپۍ خیرات کړه ، له موږ سره ستا برخه تر دې زیاته ده.**

**ابوحازم هغه روپۍ بېرته ورته راولېږلې اوپه لیک کې یې ورته ولیکل: ای امیر المؤمنین! خدای دې نه کړي چې ستاپوښتنې دې هسې ټوکې ، اوزما ځوبونه دې مسخرې وي. دغه روپۍ خومې تاته نه خوښولې نو ځان ته به یې څنګه خوښې کړم .**

**او بیا یې مدین ته د موسی علیه السلام د سفر کیسه هم ورته ولیکله... په پاي کې یې ولیکل :**

**نو که دغه سل دیناره زما د خبرو بدله وي خو بیاد اړتیا په مهال .... د خوګ غوښه هم تر دې روپیو راته حلاله بریښي. او که داهغه برخه وي چې زه یې په بیت المال کې لرم ، نو بیا خو زما په څېر نور هم ډېر حقداران شته چې په بیت المال کې حق لري، که زموږ ټولو ترمنځ برابر وېش کوې خو ښه، او که داسې نه وي نو زه دې روپیو ته اړتیا نه لرم.**

# سبقت گرفتن صحابه در محبت پیامبر صلی الله علیه وسلم

دکتر نورالدین عتر

امام طبرانی رحمة الله علیه از حضرت کعب بن عجره رضی الله عنه روایتی را نقل می کند که فرمود: روزی با جمعی از صحابه رضوان الله علیهم اجمعین در مسجد النبی در محضر پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم نشسته بودیم، گروهی از مهاجرین، گروهی از انصار و گروهی از بنی هاشم در مجلس حضور داشتند. این بحث در میان ما پیش آمد که چه کسی آن حضرت صلی الله علیه وسلم را بیشتر از همه دوست دارد و به وی نزدیک تر است. ما گفتیم: ما جماعت انصار بر پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم ایمان آورده و در تمام امور از ایشان اتباع نمودیم و در میدان جهاد، پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم را همراهی نموده و در مقابل دشمن ایستادگی کردیم.

بنابراین ما، پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم را از همه بیشتر دوست داریم و به وی نزیک تریم.

برادران مهاجر ما گفتند: ما کسانی هستیم که در سفر هجرت، دعوت خدا و رسولش را لبیک گفته و خاندان، اموال و عیال و تمام سرمایه زندگیمان را رها نمودیم و در هر غزوه‌ای که پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم که پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم شرکت می کردند، دوشادوش آن حضرت صلی الله علیه وسلم در میدان نبرد حضور داشتیم و از هر گونه حمایتی نسبت به ایشان دریغ نمی‌ورزیدیم، پس ما نزد آن حضرت صلی الله علیه وسلم محبوب تر و به ایشان نزدیک تر هستیم. برادران بنی‌هاشم ما گفتند: ما از خاندان پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم هستیم که در راه اسلام و خدمت به دین، خدمات شایان و ارزنده‌ای انجام داده و در هر غزوه‌ای که آن حضرت صلی الله علیه وسلم آهنگ سفر می کردند، حضور به هم رسانیده و در میدان کارزار هم رکاب ایشان بودند، پس ما به آن حضرت صلی الله علیه وسلم نزدیکتر و محبوب تر هستیم. در همین حین پیامبر صلی الله علیه وسلم

تشریف آورده و خطاب به ما فرمودند: «شما در رابطه با چه موضوعی با هم بحث می کردید؟» موضوع بحثمان را با ایشان در میان گذاشتیم، آن حضرت صلی الله علیه وسلم خطاب به انصار فرمودند: «شما راست گفتید، چه کسی است که قول شما را رد کند؟» ما اقوال مهاجرین را برای پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم بازگو کردیم، ایشان فرمودند: «آنها هم حقیقت را گفته‌اند، چه کسی است که قول آن‌ها را رد نماید.» سپس آن حضرت صلی الله علیه وسلم فرمودند: «آیا من در میان شما فیصله نکنم؟» عرض کردیم: یا رسول الله! پدران و مادرانمان قربان شما شوند... چرا؛ فیصله نمایید. آن حضرت صلی الله علیه وسلم فرمودند: «ای جماعت انصار! من برادر شما هستم.» انصار از فرط خوشحالی نعره‌ی «الله اکبر» سر دادند. و خطاب به جماعت مهاجرین اعلام داشتند: «ای جماعت مهاجرین! من از شما هستم.» آن‌ها هم که از خوشحالی در پوست خود نمی گنجیدند، نعره‌ی الله اکبر سر دادند. و خطاب به بنی هاشم بیان داشتند: «ای جماعت بنی هاشم! شما از من و همراه من هستید.»

راوی می گوید: ما در حالی از آن مجلس بلند شدیم که همه شادمان بودیم و به یمن حضور آن حضرت صلی الله علیه وسلم افتخار می‌نمودیم.

**جلوه‌هایی از محبت صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین**

انس بن مالک رضی الله عنه می‌فرماید: روزی که رسول الله صلی الله علیه وسلم وارد شهر مدینه شدند، همه چیز درخشنده و تابناک به نظر می‌رسید و روزی که آن حضرت صلی الله علیه وسلم وفات یافتند، تاریکی و ظلمت همه جا را فرا گرفت.

امام بخاری رحمه الله از حضرت انس رضی الله عنه روایت می کند: شخصی از رسول الله صلی الله علیه وسلم در مورد زمان وقوع قیامت سؤال کرد. آن حضرت صلی الله علیه وسلم فرمودند: «برای قیامت چه توشه‌ای آماده کرده‌ای؟» او عرض کرد: هیچ توشه‌ای ندارم مگر اینکه با الله و رسولش محبّت می کنم. آن حضرت صلی الله علیه وسلم فرمودند: «آنچه که با آن محبت داشته باشی، همراهی‌اش نصیبت می گردد.» طبق قول رسول الله صلی الله علیه وسلم که فرمودند: «المَرءُ مَعَ مَن أَحَبَّ»، حضرت انس رضی الله عنه می گوید: ما (صحابه) را هیچ چیز تا این اندازه خوشحال نمی کرد مگر همین قول پیامبر که فرمودند: «أَنْتَ مَعَ مَن أَحْبَبْتَ»؛ کسی که با او محبّت داشته باشی، رفاقتش نصیبت می گردد.

حضرت انس این حدیث را بیان کرده و فرمودند: پس من با نبی کریم صلی الله علیه وسلم و هم چنین ابوبکر و عمر محبت می کنم و امیدوارم که به سبب این محبت مرا شرف رفاقت آن‌ها نصیب گردد؛ اگر چه من اعمالی مثل اعمال آن‌ها ندارم.

اصحاب بزرگوار نیز این چنین محبت قلبی نسبت به آن حضرت می‌داشتند. قول حضرت علی کرّم الله وجه بر همین موضوع صدق می کند که فرمودند: ما پیامبر صلی الله علیه وسلم را از جان و مال و اولاد خویش بیشتر دوست می‌داشتیم و از شخصی که زمان عطش شدید، آب خنک و گوارا را چه اندازه دوست دارد، پیامبر اکرم صلی الله علیه وسلم را بیش تر دوست داریم. قول حضرت علی رضی الله عنه که می‌فرماید: «أَحَبَّ إِلَيْنَا»، مراد صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین هستند؛ چون وقتی یکی از صحابه صیغه‌ی جمع را استفاده نماید، مراد مقام صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین می‌باشند.

# لاس او پښې څنګه خبرې کوي ؟

لیکوال : نثار احمد صمد

یو شخص د مولانا اشرف علي تهانوي (رح) څخه پوښتنه وکړه چې علمأ وايي چې د قيامت په ورځ به د انسان پښې ، لاسونه او نور اندامونه د ژبې په څير خبرې وکړي ؛ د ګناهکار انسان غړي او اندامونه به د ده خلاف شاهدي اداء کړي او الله (ج) ته به ووايي چې ده فلانکۍ فلانکۍ ګناه په موږ وکړه ، آيا دا حقيقت لري ؟

مولانا اشرف على (رح) ورته وويل : هو همداسي ده ؛ هغه ورڅخه وپوښتل چې د انسان غړي او اندامونه به بيله ژبې څنګه خبري وکړي ؟ دوی خو ژبه نه لري ؟

اشرف علي تهانوي (رح) ورته وويل : ماته ښه غوږ ونيسه . لومړی موږ بايد د الله تعالي او رسول اکرم (ص) پر هره وينا پوره يقين ولرو ، که موږ هغه حقيقت درک کولای سو او که يې نه سو درک کولای.

دوهم : د خبري کولو وړتيا نه د ژبې کيفيت دی او نه د ژبې خاصيت ، بلکې دا د الله تعالي ورکړل سوې تحفه ده . حيوانات ژبې لري خو بيا هم خبري نه سي کولای . او همدا ډول ځيني انسانان ژبې هم لري خو د خبرو کولو توان نه لري بلکې ګونګيان وي ، دا ځکه چې الله تعالی د خبرو کولو استعداد نه وي ورکړی.

که څوک پوښتنه وکړي چې د انسان غړي او اندامونه به څنګه بيله ژبې خبري وکړي ؟ موږ به داسې ځواب ورکړو : کله چې ژبه بيله ژبې خبري کولای سي نو دا نور غړي او اندامونه هم بيله ژبې خبري کولای سي ځکه ژبه هم لکه دا نور غړي د غوښو يوه ټوټه ده.

د ټول کاينات پيدا کونکی او پالونکی الله چې ژبې ته د خبرو کولو توان ورکړئ دئ ، نورو غړو او اندامو ته به هم د خبرې کولو توان او طاقت ورکړي . دا ښکاره حقيقت دی چې د خبري کولو خاصيت د الله تعالی له طرفه دی بلکې د ژبې خاصيت نه دی . که خبري کول د ژبې خاصيت وای نو حيواناتو به هم خبري کولای.

مولانا اشرف علي تهانوي (رح) وپوښتل : تاسو يو وخت راډيو يا ټيپ ليدلی دی ؟ پوښتونکي وويل : هو ولي نه.

مولانا تهانوی (رح) ځني وپوښتل : راډيو او ټيپ څنګه بيله ژبې خبري کوي ؟

که حالت داسي وي ، نو د انسان غړي او اندامونه به خامخا د قيامت په ورځ خبري وکړي . چې د انسان په لاس جوړ سوي اسباب ( راډيو ، ټيپ... ) خبري کولای سي ، نو د الله تعالی پيدا کړي اندامونه خو به په ډېره آساني سره خبري وکړي .

پوښتونکی قانع سو او د مولانا اشرف علي تهانوي (رح) څخه يې مننه وکړه چې د ده له ذهنه يې شک ليري کړ.

الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَى أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ

سورة يس ، آيت نمبر -۶۵

ژباړه : نن ورځ به د دوی پر خولو مهر ووهو او د دوی لاسونه به زموږ سره خبری ورکړي او د دوی پښې به د هغو کارونو شاهدي اداء کړي چې دوی به ) په دنيا کي ) کول.

منبع : د ليکوال اثر ( اخلاقی کتابې ، لومړی ټوک ، ۲۰۱۲ ) ؛ ۲۴۷ ـ ۴۹ مخونه.

# دشهیدو زړو امامه

**ذاکر مهاجر**

اې سـتومانه لارویـه ، لا لهانـده مسـافره
لا دې اوږد مـزل پـه خـوادی، اې دهیلـو مـازدیګره

لا د شـپې پلـو تـول نـه دی، ډلـې ګـرزي د دیوانـو
ایاتونـه پـه ځـان چوف کـړه ، چې شي خلاص لـه شیطانانو

ستا ښکلا نشـي زغمـلای ، زمـا ورک یوسف جانانـه
دلیوانـو درتـه یـوه ده ، ورک دې نکـړي لـه جهانـه

دتیـارو پـه زړه کـې بیـایي، کاروانونـه دړنـا وو
پـام اوس هـم اوریـدل کیـږي، انګـولاوې دبـلاوو

قـافلې دې تـالا نشـي، سـپین غمـي درنـه وانخلـي
دغـدیو کمـین پـروت دی، چـې هسـتي درنـه وانخلـي

ګـوره لار ډیـره درنـه ده ، پکـې شـته لـوړې ژورې
ارمانونـه دې ورک نشـي، مـاتې نشـي ملغلـرې

چـې آذان دې غلـی نکړي، دشـهید و زړو امامـه
شـبګیرې دې سـتړې نشـي، دازمـون لـه تـوره ماښـامه

تـه زمـوږ دسهار زیری، سـپیدې سـتا پـه انتظـار دی
دا مظلـومې تـږې سترګې، ګـوره ښخې سـتا پـه لار دي

مـوږ سـاتلی یـې پـه زړه کـې، د ذاکـر دسـترګو تـوره
خـداې دې وسـاته جانانـه، لـه هـر رنګـه لـه هـر تـوره.

